# دتقليد شرعي حيثيت

**تاليف :**

شيخ الاسلام مولانا مفتي محمد تقي عثماني حفظه الله تعالى

**ژباړن :**

مولوي عبدالهادي حماد

# دکتاب ځانګړتیاوي


| | |
|---|---|
| دکتاب نوم ☜ | دتقليد شرعي حيثيت |
| دمؤلف نوم ☜ | شيخ الاسلام مفتي محمد تقي عثماني حفظه الله تعالى |
| ژباړن ☜ | مولوي عبدالهادي حماد |
| دچاپ ځل | دوهم |
| چاپ کال ☜ | ۱۳۸۹ هـ ش دوهم چاپ: ۱۳۹۲ |
| کمپیوټري چاري ☜ | ژباړن |
| دچاپ شمېر ☜ | زر ټوکه |
| خپرونکی ☜ | جامعه اسلاميه اشرفيه |
| دلاسته راوړولو ځای ☜ | مكتبه اشرفيه ارګ بازار كندهار افغانستان |
| اړیکي ☜ | ۰۷۹۹۷۹۵۰۵۰ ۰۷۰۰۳۲۸۵۰۴ aef.kdr@gmail.com |

# فهرست

فهرست

| شمېره | موضوع | صفحه |
|---|---|---|

# فهرست

# تقريظ

نحمده ونصلي على رسوله الكريم

درنو لوستونکو! څرګنده خبره ده ،چي څښتن تعالیﷻ ټول انسانان په يو ډول نه دي پيدا کړي بلکي دخپل بې ساري حکمت پر بنسټ يې ځيني ځواکمن ، ځيني ناتوانه ،ځيني شتمن ، ځيني ناداره ،ځيني پوهان او ځيني ناپوهان پيدا کړي دي، داخبره بيخي جوته ده ،چي که ټول خلک په يو ډول سي نو ددې پراخي نړۍ چاري به دسختو ستونزو سره مخ سي،همدا لامل دئ ،چي ددنيا په هر کونج کي ، دهر قوم ، دهري سيمي ، دهر ټبر او هر دين عالمان مخکي وي پوښتل کيږي او ناپوهان په پسي وي دپوهانو څخه پوښتني کوي ، داچي داسلام دين حق دئ ، په رشتينولۍ کي يې هيڅ شک نسته او ددې دين دپلي کېدو لپاره علماء لوی مسؤليت لري ،چي عام خلک پوښتني ځني وکړي او دوی جوابونه ورکړي او ددې دين بقا هم ددې لاري څخه کېدای سي ځکه ټول خلک علماء نه دي او نه جوړېدای سي، داچي دعلماؤ پر خبرو باندي بايد څومره اعتماد وسي او دمذهب تقليد بايد په څه ډول وسي؟ او دمدرسې دريز هم تل دخپلو مسلمانانو ورونو چوپړ په اخلاص تر سره کول دئ نو يې وغوښتل ،چي په دې اړه باندي څه تحقيقات او څېړني وکړي ، ددې هڅي په پايله کي داشرفيې مدرسې دتاليف او ترجمې دڅانګي يو تن غړي مولوي عبدالهادي حماد دهند دنيمي وچي دجيد عالم شيخ الاسلام مولانا مفتي محمد تقي عثماني حفظه الله تعالی په اردو ژبه کتاب پښتو ته ترجمه کړ، چي په ياده موضوع کي يې په زړه پوري څېړنه

کړې وه ، ياد کتاب تر ژباړې وروسته تاليف او ترجمې دڅانګي غړو وکاتی ، ترکتني وروسته جوته سوه چي نوموړی کتاب په ښه معيار دئ او په ښه معيار ژباړل سوی دئ، داچي زموږ له انده ددې کتاب ګټې ښې دي نو ځکه يې دتائيد ترڅنګ ټولني ته وړاندي کوي او هيله کوي ،چي الله جَلَّ جَلَالُهُ يې دټولو مسلمانانو لپاره داستفادې وړ وګرځوي.

وبالله التوفيق

داشرفيې مدرسې دتاليف او ترجمې څانګه

| دتاليف او ترجمې دڅانګي اراکين | |
|---|---|
| نوم | دنده |
| مولوي محمدرسول صاحب | عمومي رئيس |
| شيخ الحديث مولوي عبدالرحيم صاحب | رئيس دارالافتاء |
| مولوي سيد احمد غفوري | نائب دارالافتاء |
| مولوي مجاهد صاحب | نائب مهتمم |
| مفتي ګل احمد صاحب | عضو دارالافتاء |
| مولوي سيداحمد صابر | مدرس وعضو دارالافتاء |

# دړېيل خبرې

بسم الله الرحمن الرحيم

الحمد لله نحمده وكفى وسلام على عباده الذين اصطفى.

ثرگنده خبره ده ،چي دتقليد په اړه دومره ليکني سوي دي ،چي زما لپاره ددې فکر هم نه سي کېداى ،چي زه دي په دې اړه څه زياتوني وکړم ،له نېکه مرغه دهمدې موضوع يعني دتقليد دموضوع اړونده ديوې رسالې اسباب او توکي په ناڅاپي اوقدرتي ډول سره برابر سوه ،ځکه په ۱۹٦۳ م سنه کي زما څخه دفاران مياشتنۍ مجلې مسؤل مدير ښاغلي ماهر القادري په کراچي کي دتقليد اړونده يو مضمون دوخت داړتيا له امله وغوښتى ، خو ما په يا سره جواب ورکړ، يعني خوښه مي نه وه ،چي مضمون دي دتقليد په موضوع کي ورکړم ، ځکه ما غوښته ،چي دپلار پر پل باندي پل کښېږدم او په خپل ژوند کي داختلافي مسائلو څخه لاس پر سر سم بيا مي بېرته فکر وکړ، ،چي کاشکي يو داسي مضمون وليکم ،چي دتقليد موضوع په داسي ښه پکښې ثرگنده سي ،چي ديوه اړخه يې هغه اصلي حقيقت ثرگند سي او دبله اړخه دامضمون په داسي ښه وي ،چي ددعوت رنګ ولري يعني داچي هغه کسانو ته دعوت سي ،چي هغوى اختلافي مسائلو ته لمن وهي او يو له بله کافران سره وايي يعني داچي يو يوه ته کافر وايي اوبل ،بل ته کافر وايي ،لنډه داچي يو مضمون مي وليکى او دکراچي څخه خپرېدونکي مياشتنۍ مجلې ـ فاران ته مي ورکړ، نوموړى مضمون دلومړي ځل لپاره په کال ۱۹٦۳م کي خپور سو ، له نېکه مرغه ياد مضمون روڼ آندو

زيات خوښ کړ ، آن تردې ،چې د هندوستان اوپاکستان څخه زياتو خپرېدونکو مجلو خپور کړ. بله خبره لادا وه ،چې په جوناګړ کې مسلمانانو زما دغه مضمون ديوې بيلې رسالې په بڼه چاپ ته وسپاری او بيايې نشر کړ. که څه هم زما دغه مضمون په داسې ډول ترتيب سوی وو ،چې هيڅ دمناظرې او مقابلې بڼه يې نه درلوده ،خو کوم ملايان صاحبان ،چې دتقليد څخه مخالف وه هغوزما پر ليکنه باندې پوره نيوکې پيل کړې په ځانګړې ډول په دوی کې حضرت مولانا محمد اسمعيل سلفي صاحب زما دليکنې په رد کې خپله يوه ليکنه په الاعصام اونيزه کې په ديارلس برخو کې خپره کړه بيا يې خپله دغه ليکنه دخپل کتاب (*تحریک ازادی اور شاہ ولی اللہ کی مساعی*) ـ برخه وګرځول، خبره داوه ،چې يو کتاب د(التحقيق في جواب التلقيد) په نوم يو نشر سو، نوموړی کتاب ديوه داسې چا ليکنه وه ،چې دڅلورګونو مذهبونو امامانو ته ددې نسبت کوي ،چې شريعت دوی دځانه جوړکړی دئ او کوم څوک ،چې ددوی تقليد کوي هغه کافران دي ، همدا ډول اسلامي فقه ته ديوه داسې فن په ستركه ګوري ،چې دځان څخه جوړ سوی وي دقرآن او حديث څخه چېل سوی نه وي. بله خبره داده ،چې دحيدرآباد ددکن سيمي څخه هم په مياشتنۍ کې پردې موضوع باندې يوه څېړنه راغله ،چې غالبا دغه مجله به البيان مجله وه خو داچې مناظره کول او دچا سره مباحثه کول زما عادت نه وه نو ځکه مې تر ديارلس کلونو پورې دتقليد پر موضوع باندې هيڅ نه وليکل ، دا،چې زما لومړۍ ليکنه دنظر څښتنانو او روڼ آندو زياته خوښه کړې وه نو ددوی هيله داوه ،چې دا مضمون دې دلته په پاکستان کې هم دهندوستان په څېر په کتابي شکل چاپ اوخپورسي ،ما وغوښتل ،چې ددوی دغه غوښتنه

پوره کړم نو ځکه مي دهغه ليکني دچاپ اراده وکړه کومه ،چي ما لومړۍ په فاران مجله کي خپره کړې وه البته زما په آند ما اړينه وګڼل ،چي دا ليکنه ددوهم ځل لپاره تر نظر تېره کړم ځو بنه تحقيقاتي ليکنه سي او کومي نيوکي ،چي زما پر ليکنه سوي دي هغه هم تر نظر تېري کړم او بيا جوابونه ورته ووايم ، لنډه داچي دا کار مي وکړ او دا کتاب ځني جوړ سو کوم ،چي ستاسو په لاس کي دئ خو داچي مناظره، مباحثه ، سوال او جواب کول زما عادت نه دي نو ځکه ما ،چي دکومو نيوکو جوابونه ويلي دي دنيوکه کونکو نومونه مي دځو اړينو ځايونو څخه پرته نه دي ياد کړي او اوس هم دا وايم ،چي دا کتاب دمناظرې او مباحثې کتاب نه دئ بلکي دا دتقليد دعلمي مسئلي څېړنيز کتاب دئ ددې کتاب اصلي موخه داده ،چي دمسلمان امت دلوی اکثريت تګ لاره واضحه کړي ، هغه لويه ډله ،چي تل يې داامامانو تقليد کړی دئ ، همدا ډول په دې کتاب کي دتقليد اړونده دافراط او تفريط تر منځ منځګړې لاره بيان سوې ده هغه لاره ،چي داهل سنت والجماعت زيات علماء پر روان دي ، نو ځکه مي وټولو خلکو ته هيله داده ،چي دې کتاب ته دمناظرې دجذبې او رخې په سترګه نه ګوري بلکي دې کتاب ته دي دتقليد دمسئلې ديوه څېړنيز کتاب په سترګه وګوري او بيا دي دا کتاب مطالعه کړي .

وروستی خبره داده ،چي په معاصر وخت کي دغير مقليدنو ، متجددينو او اباحت خوښو انسانانو په امامانو پسي خورا ډيري خبري دځانه ترلي دي ، زه اميد لرم ،چي داکتاب به ددوی دشبهاتو په ليري کولو کي هم رول ولري او ګټه به ورته وکړي ، الله جَلَّ جَلَالُهُ ته مي دعا داده ،چي زما دغه کوچنۍ هڅه او زيار دي دقبوليت په لورونه ونازوي او الله جَلَّ جَلَالُهُ ددې رسالې څخه عامو مسلمانانو ته ګټه او نفعه ورسوي . آمين

وماتوفيقي الا بالله وعليه توكلت واليه انيب.

احقر محمد تقي عثماني خادم دارالعلوم كراچي ۱۴

بسم الله الرحمن الرحيم

الحمد لله نحمده وكفي وسلام علي عباده الذين اصطفى.

# دتقليد حقيقت

درنو لوستونکو! داچي داسلام اصل دعوت ديوه اللهﷻ داطاعت لوري ته رابلل دي، ددې څخه هيڅوک انکار نه سي کولای او داچي دمحمدرسول اللهﷺ اطاعت کول هم لازمي دئ دائکه ،چي رسول اللهﷺ په خپله ژبه او فعل سره داللهﷻ داحکامو ترجماني کړې ده ، داچي کوم شی حلال دئ؟ ، کوم شی حرام دئ ؟، کوم شی جايز دئ؟ او کوم شی مستقل بالذات (بلاواسطه) ناجايز دئ؟ په دې ټولو کي بايد ديوه اللهﷻ او درسول اللهﷺ اطاعت وکړل سي ، داللهﷻ او درسول اللهﷺ پرته دبل چا اطاعت هيڅ جواز نه لري او که څوک دبل چا اطاعت کوي ، بل څوک مستقل بالذات (بلاواسطه) پوره مطاع ګڼي داسي څوک په يقيني ډول داسلام ددايرې څخه وتلی دئ نو ځکه پر هر مسلمان باندي په کلکه لازمي ده ،چي دقرآن او حديث پيروي وکړي او څه ،چي قرآن او حديث ورته وايي همدغسي عمل وکړي ،خو پاته دي نه کي ځيني داسي څه سته ،چي يو لږ تعليم لرونکی کس هم په پوهېدای سي لکه لاندنی آيت:

وَلَا يَغْتَب بَّعْضُكُم بَعْضًا ..... (1)

هرڅوک ،چي يوازي په عربي ژبه پوهيږي هغه په پورتني مطلب پوهيږي ، ځکه په پورتني مطلب کي نه څه ناڅرګندتيا سته او نه کوم بل شرعي دليل سته ،چي ورسره ټکر وي له همدې امله دپورتني مطلب په ثبوت کي هيڅ شک نسته.

همدا ډول درسول اللهﷺ په لاندنۍ وينا باندي لږ تعليم لرونکی کس ،چي يوازي په عربي پوهيږي هم پوهېدای سي:

﴿ لافَضْلَ لِعَرَبِي عَلَى عَجَمِى ﴾

ژباړه : عربي پر عجمي باندي کوم فضيلت نه لري.

درسول اللهﷺ په پورتنۍ وينا کي هيڅ ناڅرګندتيا نسته او نه کوم مشکل پکښي سته کوم څوک ،چي يوازي په عربي ژبه پوهيږي هغه دپورتني حديث په مطلب په اسانۍ سره پوهېدای سي.

دپورتنۍ خبري بالعکس داسي آياتونه او حديثونه هم سته ،چي معناوي يې څرګندي نه وي بلکي يو ډول ناڅرګندتيا پکښي وي ، هرڅوک نه په پوهيږي ، ځکه په ښکاره يوه معنا ورکوي ، خو په حقيقت کي يې بله معنا وي ، ددې سره داسي احکام هم سته ،چي دقرآنکريم دکوم بل آيت او يا کوم بل حديث سره تعارض لري يعني



آيت کي اللهﷻ فرمايي:

وَٱلْمُطَلَّقَٰتُ يَتَرَبَّصْنَ بِأَنفُسِهِنَّ ثَلَٰثَةَ قُرُوٓءٍ .....[1]

[1]: البقرة ، اية ٢٢٨

ژباړه :کومي ښځي ،چي طلاقي کړل سي هغوی دي دري قروء انتظار وکړي(نور مړونه دي نه کوي).

په پورتني آيت کي دطلاقي سوي ښځي لپاره دري قروء دعدې اندازه ښودل سوې ده، داچي قرء څه ته وايي؟ بايد ووايو ،چي قرء په عربي ژبه کي په لاندي دوو معناوو استعماليږي :

۱: قرء معنا حيض (دښځي مياشتنۍ ناروغي)

۲ : قرء معنا طهر ( يعني دښځي هغه شپې او ورځي ،چي ښځي ته پکښي مياشتنۍ ناروغي نه وي).

اوس نو که قرء دحيض په معنا کړو نو دطلاقي سوي ښځي عده دري حيضه کېږي يعني داچي ښځه به دري حيضه دمېړه په کور کي عده تېروي بيا کولای سي ،چي بل مېړه وکړي او يا دپلار کورته ولاړه سي . که قرء دطهر په معنا سي نو دطلاقي سوي ښځي عده دري طهره کېږي اوس نو موږ ته سوال پيدا کېږي ،چي موږ په کوم يوه عمل وکړو؟ يعني داچي دطلاقي سوي ښځي عده به دري طهره وي اوکه به دري حيضه وي؟

په بل حديث کي راځي:

عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ مَنْ لَمْ يَذَرْ [illegible] [illegible] مِنْ اللَّهِ [illegible].[1]

ژباړه :دجابر بن عبدالله رضي الله عنه څخه روايت دئ چي درسول الله صلی الله عليه وسلم څخه مي واورېدل: چا که مزارعت نه پرېښودئ دالله جل جلاله او دهغه [illegible] صلی الله عليه وآله وسلم [illegible]

[illegible] [illegible] ۹ [illegible]
[illegible]، ط:المکتبةالشاملة

پورته حديث ته که وکتل سي نو دمزارعت منعه پکښې راغلې ده حال داچي مزارعت ډېر ډولونه دي،دامعلومه نه ده ،چي دمزارعت ټول ډولونه ناجايز دي؟ اوکه کوم خاص ډول مزارعت ناجايز دئ؟ ، که خاص ډول مزارعت ناجايز وي نو دا نه ده معلومه ،چي کوم ډول يې جايزنه دئ؟.

**يادونه** : مزارعت دې ته وايي ،چي يوڅوک خپله مځکه په کښت باندي وبل چاته په يوه ټاکلې برخه ورکړلې لکه ،چي په نيمايي يې ورکړي ،يايې په دوهمه ورکړي ،يايې په دريمه ورکړي او داسي نور.

په بل حديث کي راځي :

من کان له امام فقراءة الامام له قراءة

ژباړه : کوم چا لره ،چي امام وي نو دامام قرئت دده لپاره هم کفايت کوي.

دپورتني حديث څخه معلوميږي ،چي کله مقتدي په امام پسي ولاړ وي نودامام قرئت دمقتدي لپاره کفايت کوي او مقتدی بايد چوپ ودريږي. خو په بل حديث کي بيا ددې حکم خلاف خبره ثابتيږي ځکه رسول اللهﷺ فرمايي:

لَا لَمْ (1)

لمونځ ، لمونځ نه دئ يعني لمونځ يې نه صحيح کيږي.

دپورتني حديث څخه ثابتيږي ،چي الحمد لله ويل لازمي کار دئ بايد وويل سي اوس نو که پورته دواړه حديثونه په نظر کي ونيول سي انسان

(1) ، ص ورقم الحديث ۷۱۴

ته سوال پيدا کېږي ،چي په کوم حديث عمل وکړل سي؟ ايا په لومړی حديث عمل وکړل سي او که په دوهم حديث عمل وکړل سي؟ که په دوهم حديث عمل وکړ ل سي نو دا نه ده معلومه ،چي ددوهم حديث حکم يوازي منفرد او امام ته متوجه دئ مقتدی ځني استثناء دئ اوکه په لومړی حديث عمل وکړل سي هلته هم نه ده معلومه ،چي دقرئت څخه دالحمدلله پرته نور قرائت مراد دئ خو په هر صورت ناڅرګندتيا موجوده ده تعارض موجود دئ.

تاسو وليدل ،چي دقرآن او حديث څخه داحکامو په را ايستلو او چڼلو کي څومره مشکلات سته اوس نو کله ،چي موږ دقرآن او حديث څخه احکام راباسو او دپورته په ډول ټکرونه او تعارضونه مخته راسي په داسي حال کي نو موږ دوې لاري لرو لومړی داچي موږ په خپل فکراو بصيرت باندي يو ډول فيصله وکړو يعني داچي دتعارض په وخت کي موږ وګورو ،چي کوم لوری زموږ په آند باندي غوره او ښه وبلل سو پرهغه لوري باندي پرېکړه وکړو ، دوهم داچي موږ وګورو ،چي زموږ پخوانيو سترو اومخوروعلماوو دداسي ټکر ځايونو څخه کوم مطلب اخيستی دئ، ښکاره خبره ده ،چي زموږ په پخواني ستر او مخور علماء خامخا تر موږ زيات پوهېدل ، خامخا ددغسي ځايونو په مطلب تر موږ ښه پوهېدل او داسي نظر يې ځني اخيستلای سوای ،چي غالبا حق به وای ، همدا ډول کوم علماء ،چي دلومړی پېړۍ علماء وه دهغو بصيرت

داحتياط لاره ده.

بله خبره دا هم ده ،چي موږ نه داچي دتواضع او عاجزۍ له امله داخبره کووبلکي يقيني خبره ده څوک ښېخي ځني منکر کېداى نه سي ،چي موږ په علم ، پوهه ، ديانت ، تقوا ، فهم ، ذکاوت، دين ، پرهېزګارۍ او داسي نور کي دپخوانيو مخورو علماوو په پرتله ،چي په لومړيو پېړيو کي تېر سوي دي ـ ښېخي خالي لاس يو بلکي په هر اعتبار سره دهغو په پرتله هيڅ په لاس کي نه لرو ، آن ترديې ،چي زموږ او دهغو ترمنځ ښېخي تناسب نه سي کېداى ځکه هغه علماء په لومړيو پېړيو کي تېرسوي دي په داسي پېړيو کي تېر سوي دي ،چي دقرآنکريم دنزول وخت ته نژدې وه نو ځکه په قرآن باندي ددوى پوهاوى اسانه وه او بالعکس موږ درسالت دوخت څخه خورا ډېر ليري يو ، دومره ليري يو ،چي دقرآن دنزول چاپېريال ، دهغې زمانې دژوند کولو طريقه او دخبرو کولو بڼه په صحيح ډول تصور کول او په کټ مټ ډول تصور کول ډېر ګران کار دئ ، صحيح پوهاوى خو لا ايسته پرېږده ، دپورته خبرو په نظر کي نيولو سره که يو کس دقرآن په هغه مسئلو کي ،چي سختي پېچلي وي او يا په خپل منځ کي تعارض سره ولري نو ددې پر ځاى ،چي پر خپل فهم اونظر باندي اعتماد وکړي دپخوانيو اومخورو علماوو پر لاره باندي ولاړ

پرځاى باندي دهغو لاره تعقيب کړي همدې ته تقليد وايي او موږ ويلاى سو ،چي فلاني کس دفلاني عالم تقليد وکړ، همدا دتقليد حقيقت دئ.

ى پروت وي په حکم

پوهېدل یې گران وي ، دغه اشکال یا خو دقرآن او حدیث په لفظ کې پروت وي ،چې لفظ څو معناوي لري هر کس ته نه معلومېږي ،چې ددې لفظ څخه کومه معنا مراد ده اویا داچې دیادي مسئلې دحکم په دلایلو کې تعارض او ټکر پروت وي.

دقرآن او حدیث کوم احکام ،چې قطعي دي یعني یقیني دي ، څه اشکال ، ناڅرگندتیا ، گرانوالی او تعارض پکښې نه وي په داسې مسئلو کې دهیڅ مجتهد یاعالم تقلید ته اړتیا نسته لکه ،چې مشهور حنفی عالم علامه عبدالغني نابلسي رحمه الله فرمایلي دي:

فالامر المتفق علیه المعلوم من الدین بالضروره لایحتاج الي التقلید فیه لاحد الاربعة کفرضیة الصلوة والصوم والزکاة والحج والسرقة والغصب واما اشبه ذالک والامر المختلف فیه هو الذي یحتاج الي التقلید فیه.(1)

ژباړه : ددین هغه مسئلې ،چې دټولو پراتفاق دئ لکه دلمانځه ، روژې ، زکاة او حج فرضوالی ، یا دغلا ، غصب او داسې نور حراموالی په داسې مسئلو کې دڅلورگونو مذهبونو تقلید ته هیڅ اړتیا نه سته ، هغه مسئلې ،چې اختلاف پکښې وي په هغو کې تقلید ته اړتیا سته.

علامه خطیب بغدادي رحمه الله فرمایي:

[redacted] صلی الله علیه وآله وسلم کالصلوة

الخمس والزکاة وصوم شهر رمضان والحج [redacted]

ولانا لم منعنا التقلید في هذه المسائل التي [redacted]

---

1: خلاصة التحقیق في حکم التقلید والتلفیق ، ص : ۴ ط : المکتبة الیشیق [redacted]

هي من فروع الدين لاحتاج كل احد ان يتعلم ذالک وفي ايجاب ذالک قطع عن المعايش وهلاک الحرث والماشية فوجب ان يسقط.(1)

ژباړه : شرعي احکام دوه ډوله دي: يو يې هغه دئ ،چي څرنګوالی يې په دين کي ښکاره وي لکه پنځه ګوني لمونځونه ، روژه نيول ، حج کول ، دزنا او دشرابو حراموالی او داسي نور په داسي احکامو کي تقليد کول نه دئ جايز ځکه ټول خلک ددغه شيانو په پوهاوي او علم کي سره شريک دي په داسي شيانو تقليدکول بې معنا کار دئ. دوهم ډول يې هغه مسئلې دي ،چي دنظر او استدلال پرته نه معلوميږي لکه دعباداتو ، معاملاتو ، نکاح او داسي نورو فرعي مسئلې په داسي مسئلو کي تقليد کول جايز دئ ځکه الله جل جلاله فرمايي: که تاسو نه پوهېدلاست نو دعلماوو څخه پوښتنه وکړئ ، په داسي ګرانو مسئلو کي موږ تقليد نه منعه کوو ځکه که تقليد منعه کړو نو پر هر سړي باندي به لازمه سي ،چي نوموړي مسئلې په څېړنيز ډول زده کړي او که دا کار پر هر چا باندي واجب وګرځول سي دژوندانه ټولي چاري به ودريږي ، ژوند کول به ګران سي ، فصلونه او حيوانان به لمنځه ولاړ سي، همدا وجه ده ،چي پر هر چاباندي پورتنی وجوب نسته.

حکيم الامت مولانا اشرف علي تهانوي رحمه الله فرمايي:

مسئلې درې ډوله دي : يو ډول هغه مسئلې دي ،چي نصوص په هغو کي متعارض وي، دوهم هغه ډول مسئلې دي ،چي په هغوکي نصوص متعارض نه وي مګر دزياتو معناوو او وجوهاتو احتمال لري، دريم هغه مسئلې دي ،چي نه نصوص پکښې متعارض وي او نه زياتي معناوي

[1]: الفقيه والمتفقه، للخطيب البغدادي رحمه الله ج : ٢ ص : ٦٧و ٦٨ ط : دارالافتاء سعوديه رياض ، سنه ١٣٨٩ هـ ق

او احتمالات لري. په لومړی قسم کي ،چي تعارض موجود وي مجتهدته داجتهاد اړتيا ده او مقلد ته دتقليد اړتيا ده، دوهم قسم ته ظني الدلالت ويل کېږي داچي په دوی کي ديوه احتمال تعين کېږي نو بيا هم اجتهاد او تقليد ته اړتيا سته او دريم قسم ته قطعي دلايل ويل کېږي په دغه قسم کي نه اجتهاد جايز دئ او نه تقليد جايز دئ.([1])

دپورتنيو خبرو په نظر کي نيولو سره داخبره معلوميږي ،چي ديوه امام دتقليد څخه مطلب دا نه دئ ،چي نوموړی امام خپله داسي څوک دئ ،چي وجوبا دي يې تقليد وسي او يادي واجب الاطاعت ورته وويل سي او اتباع دي يې وسي او يا دي نوموړي امام دشريعت جوړونکی ، شارع او ددين د قانون جوړونکی وبلل سي ، په هره خبره کي دي دده پيروي واجب وګڼل سي بلکي ددې مطلب دادئ ،چي اصلا پيروي دقرآن او حديث ده داچي په پېچلو مسائلو کي په قرآن او حديث باندي پوهاوی ګران کار دئ او دغه امام ددغه پېچلو مسائلو حل او دقرآن او حديث صحيح تعبير په خپل ژور فکر باندي کړی دئ نو ددغه امام پر تعبير باندي او دمسئلو پر حل باندي اعتماد وکړل سي همدا لامل دئ ،چي په څرګندو او يقيني مسئلو کي تقليد نه دئ لازم، ځکه په هغه ځای ■ جل جلاله او درسول الله صلی الله علیه وآله وسلم داطاعت کولو مقصد دتقليد پرته په اسانۍ سره لاسته راوړل کېدای سي.

لکه مخکي ،چي مو وويل ،چي کله دامام تقليد وکړل سي نو امام ته يوازي شارح ويل کېږي او بالذات واجب الاتباع نه دئ همدا داخبره

[1]: الاقتصاد في التقليد والاجتهاد ص ■

خپله دتقليد په تعريف کي داخله ده ځکه علامه ابن الهمام رحمه الله او علامه ابن نجيم رحمه الله دتقليد دتعريف په هکله داسي فرمايي:

التقليد العمل بقول من ليس قوله احدى الحجج بلاحجة منها(1)

ژباړه: تقليد دې ته ويل کېږي، چي دکوم چا قول دشريعت ماخذ نه وي، دهغه پر خبره (قول) ددليل دغوښتلو پرته عمل وکړل سي.

دپورته تعريف څخه په ښکاره معلومېږي، چي مقلد دخپل امام قول شرعي ماخذ نه ګڼي ځکه شرعي ماخذ يوازي قرآن او حديث، دقرآن او حديث په رڼا کي اجماع او قياس دي، مقلد ځکه دامام پر خبره باندي اعتماد لري، چي امام دقرآن او حديث په پوهاوي کي پوره لاس رسی او بصيرت لري، مقلد وايي کوم مطلب، چي امام دقران او حديث څخه اخستی دئ هغه زما لپاره داعتماد وړ دئ، دپورته خبرو په نظر کي نيولو سره تاسو ښه په عدل او انصاف سره پرېکړه وکړئ، چي په دا ډول تقليد کي، چي لوړ يې بيان سته څه دګناه او يا دشرک خبره سته؟ که يو څوک خپل امام شارع بولي او خپله امام ددين قانون جوړونکی او يا امام بالذات واجب الاطاعت بولي نو دا خوښکاره خبره ده، چي دغه کار ته شرک ويل کېږي، او که څوک خپل امام شارع نه بلکي ددين

دي تر خپل تعبير دهغه پر تعبير باندي اعتماد وکړي په ځانګړې توګه په اوس وخت کي، چي علمي خلا خورا زياته ده، داسي کار کول

---

1: تيسير الحرير لامير بادشاه البخاري ج: ۴ ص

۲، ص: ۳۷، ط: مصر، نېټه: ۱۳۵۵ هـ ق

نه يوازي ،چي لازمي دئ بلکي ددې کار څخه تېښته او ځان خلاصول ناممکن دي ، ددې مثال دپاکستان قانون وبولئ ،چي نن په ټوله پاکستان کي پلی ، دغه قانون ،چي کله مدون اوترتيب سو نو په کتابي بڼه په هيواد کي خپور سو په دغه قانون باندي په پاکستان کي په ميلنونو انسانان عمل کوي ، ستاسوپه آند دغه خلک نو ټوله قانون ګوري بيا عمل په کوي؟ حال داچي دهيواد بې سواده خلک څه ،چي ډېر تعليم يافته خلک هم ددې غوښتنه نه کوي ،چي موږ قانون په کتاب کي وګورو بيا عمل په وکړو بلکي دلوړو پوهانو لپاره هم ،چي کله په دغه قانون کي څه ناڅرګندتيا تر سترګو سي نو ديوه وکيل څخه پوښتنه کوي اودهغه وکيل پر خبره باندي اعتماد کوي ، تاسو فکر وکړئ څوک ،چي سالم فکر ولري هغه به داخبره ومني ،چي وکيل دقانون جوړونکی دئ؟ اويا عامو خلکو دوکيل خبره منلې ده دا نو دا معنا ،چي وکيل په قانون کي پوره اختيار لري؟؟؟ تغير او تبديل ورکولای سي؟ بلکي يوازي وکيل دقانون معبر دئ عام خلک دده پر تعبير باندي اعتماد کوي. په دغه ډول دقران او حديث معامله هم ده کله ،چي په قرآن او حديث کي څه ګران ځای راسي نو عام خلک نه په پوهيږي نو خلک

خبري ته تقليد وايي همدا وجه ده ،چي موږ پر عامو خلکوباندي دا الزام نه سو لګولای ،چي دوی دي دقرآن او سنت پرځای دمجتهدينو امامانو اتباع وکړي.

# دتقليد دوه صورتونه

تقليد دوه ډوله دئ لومړی داچي مقلد دځان دتقليد لپاره يو خاص مجتهد ونه ټاکي بلکي په يوه مسئله کي ديوه امام تابعداري وکړي او په بله مسئله کي دبل امام تابعداري وکړي دغسي تقليد ته مطلق تقليداو يا عام تقليد وايي.

دوهم ډول تقليد هغه تقليد دئ ،چي يو کس يو خاص امام وټاکي په ټولو مسئلو کي دهمدغه امام تابعداري کوي ، دغه تقليد ته شخصي تقليد وايي.

دتقليد ددواړو ډولونو حقيقت دادئ ،چي يو کس په خپل نظر ، فکر او فهم سره دقرآن او حديث څخه دمسائلو استنباط نه سي کولای او په مجتهدينو کي ديو کس پر بصيرت ، پوهه او فهم باندي اعتماد ولري ، ددغه مجتهد پر تشريحاتو باندي ،چي دقران او حديث لپاره يې کړي دي پر هغه اعتماد ولري ، کوم مسائل ،چي نوموړي مجتهد دقرآن او حديث څخه استنباط کړي وي پر هغه باندي اعتماد ولري بيا عمل په وکړي . داسي تقليد کول نه يوازي ،چي جايز دئ بلکي پر واجب والي باندي يې په قرآن او حديث کي ګڼ شمېر دلايل شتون لري.



# دتقليد ثبوت په قرآن سره

کوم تقليد ،چې پورته بيان سو اصولي لارښوونې يې خپله په قرآن کې
سته ځکه الله جل جلاله فرمايي:

**لومړی آيت :** يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓا۟ أَطِيعُوا۟ ٱللَّهَ وَأَطِيعُوا۟ ٱلرَّسُولَ وَأُو۟لِى ٱلْأَمْرِ مِنكُمْ ۖ (1)

ژباړه : اې ايمان لرونکو ! دالله جل جلاله او د رسول الله صلى الله عليه وسلم پيروي وکړئ او
د (اولي الامر) اطاعت او پيروي وکړئ.

په پورته آيت کې ،چې د (اولي الامر) لفظ ذکر سوی دئ ځينو علماوو
يې په تفسير کې ليکلي دي ،چې مراد ځني دمسلمانانو حاکمان او
واکمنان دي او ځينو بيا ويلي دي ،چې د (اولي الامر) څخه مراد دفقه
علماء او پوهان دي يعني داچې دفقه دعلماوو اطاعت دي وکړل سي ،
داچې د (اولي الامر) څخه مراد علماء سي دا تفسير حضرت جابر بن
عبدالله رضي الله عنه ، حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنه ، حضرت مجاهد رحمه الله ،
حضرت عطاء بن ابي رباح رحمه الله ، حضرت عطاء بن السائب رحمه الله ،
حضرت حسن بصري رحمه الله [redacted] رحمه الله [redacted]
[redacted] (

بله خبره لاداده ،چې دپورتنيو علماوو تفسير امام رازي رحمه الله خورا په
ډېرو دلايلو تائيد کړی دئ او همدا تفسير ته يې ترجيح ورکړې ده او

1: سورة نساء الاية ۵۹

2: دحضرت عبدالله بن عباس تفسير دمعاويه بن صالح او علي بن طلحة له طريقه
روايت سوی دئ ، ابن جرير ج [redacted]

بيا يې ليکلي دي ،چې د (اولي الامر) دلفظ څخه علماء مرادول اولي او غوره کار دئ.(1)

ابوبکر جصاص رحمه الله بيا دپورتنيو دوو تفسيرونو په اړه وايي : دواړه تفسيرونه درست دي او په خپل منځ کي کوم تعارض هم نه لري ځکه ،چې دمسلمانانو دواکمنانو اطاعت دي په سياسي چارو کي او دعلماوو اطاعت دي په مذهبي چارو کي وکړل سي.(2)

علامه ابن القيم رحمه الله فرمايي: دآمرانو او واکمنانو اطاعت هم په حقيقت کي دعالمانو اطاعت او پيروي ده ځکه آمران هم په خپل حکومت او دولتي چارو کي دعالمانو پابند دي څه ډول ،چې اسلامي لارښووني عالمان و واکمنانو ته ښيي په هغه ډول به واکمنان عمل کوي لنډه دا چې دواکمنانو اطاعت دعالمانو اطاعت دئ.

علامه ابن القيم رحمه الله فرمايي:

فطاعة الامرآء تبع لطاعة العلماء.(3)

ژباړه : دواکمنانو پيروي دعالمانو دپيروی تابع ده.

په هر صورت که دپورته آيت تفسير په نظر کي ونيول سي نو مسلمانانو ته لارښوونه کوي ،چې دالله جل جلاله او درسول الله صلی الله عليه وآله وسلم اطاعت وکړئ ، [redacted] جل جلاله او درسول الله صلی الله عليه وآله وسلم دويناوو شرحه تاسو ته کوي په کومو ويناوو ،چې تاسو نه پوهېږئ هغه تاسو ته درښيي. دغه اطاعت ،چې په ايت کي ذکر [redacted]

[redacted] ص : ۳۳۴.

2: احکام القران للجصاص ج : ۲ ص [redacted] باب في طاعة اولي الامر.

3: اعلام الموقعين لابن القيم ، ج : [redacted]

دپورتني آيت پسې الله جَلَّ جَلَالُهُ فرمايي:

فَإِن تَنَٰزَعۡتُمۡ فِي شَيۡءٖ فَرُدُّوهُ إِلَى ٱللَّهِ وَٱلرَّسُولِ إِن كُنتُمۡ تُؤۡمِنُونَ بِٱللَّهِ وَٱلۡيَوۡمِ ٱلۡأٓخِرِۚ ....(1)

ژباړه : كه ستاسو په منځ كي دكومي مسئلې اړونده اختلاف پيښ سي نو تاسو الله جَلَّ جَلَالُهُ او دالله جَلَّ جَلَالُهُ رسول ﷺ ته رجوع وكړئ كه تاسو پر الله جَلَّ جَلَالُهُ او دقيامت پر ورځ باندي ايمان لرئ.

داچي پورتني آيت ،چي داولي برخي په تعقيب راغلى دئ- وكتل سي نو داسي بريښي لكه داچي دهغه تفسير مستقله جمله وي ،چي مجتهدينو ته خطاب سوى دئ.

ابوبكر جصاص رحمه الله پر دې خبره اسرار كوي ،چي داولي الامر څخه علماء مراد اودخپلي خبري دتائيد لپاره ليكي:

وقوله تعالي عقيب ذالک فَإِن تَنَٰزَعۡتُمۡ فِي شَيۡءٖ فَرُدُّوهُ إِلَى ٱللَّهِ وَٱلرَّسُولِ يدل علي ان اولي الامر هم الفقهاء لانه امر سائر الناس بطاعتهمثم قال فان تنازعتم الخ فامراولي الامر برد المتنازع فيه الي كتاب الله وسنة نبيه ﷺ اذا كانت العامة ومن ليس من اهل العلم ليست هذه مترلتهم لانهم لايعرفون كيفية الردالي كتاب الله والسنة ووجوه دلائلها علي احكام الحوادث فثبت انه خطاب للعلماء.(2)

[illegible] جَلَّ جَلَالُهُ [illegible]

امر وكړ، دستي يې ورپسې وويل ،چي كه ستاسو ته په كومه مسئله كي اختلاف پيدا سو نو الله جَلَّ جَلَالُهُ او رسول الله ﷺ لوري ته رجوع وكړئ ،

1: سورة نساء الاية ٥٩

2: [illegible]

ددغه خبري څخه ښكاره معلوميږي ،چي داولي الامر څخه مراد فقهاء دي ځكه الله جَلَّ جَلَالُهُ ټولو خلكو ته امر وكړ ،چي تاسو دفقهاوو اطاعت وكړئ او بيا يې فقهاوو ته وفرمايل ،چي كه ستاسو په كومه مسئله كي اختلاف پيښ سي نو قرآن او حديث ته رجوع وكړئ ، داحكم يوازي فقهاوو ته دئ ځكه عام او بې علمه خلك ددې مقام څخه برخمن نه دي ځكه هغوته دا نه معلوميږي ،چي دقرآن اوحديث څخه دي كومي مسئلې ثابتي سي او څنګه دي ثابتي سي، همدا ډول عامو خلكو ته نه معلوميږي ،چي نوي مسئلې څنګه استنباط سي ، نه داستنباط علم ورسره سته او نه يې دلايل ورته معلوميږي ،چي مسئلې دي يې په مټ استنباط كړي نو بالاخره داخبره ثابته سوه ،چي دا خطاب يوازي علماوو ته دئ.

مشهور اهل حديث علامه نواب صديق حسن خان صاحب رَحِمَهُ اللهُ هم په خپل تفسير فتح البيان كي په دې خبره اعتراف كړى ،چي د (فان تنازعتم) خطاب مجتهدينو ته دئ ځكه دى فرمايي:

والظاهر انه خطاب مستقل مستانف موجه للمجتهدين.([1])

ژباړه :ښكاره خبره داده ،چي دايو مستقل خطاب دئ او مجتهدينو ته

دپورته ټولو خبرو څخه داخبره څرګنديږي ،چي كوم خلك ،چي داجتهاد وړتيا نه لري هغو ته اجازه نسته ،چي په اختلافي مسائلو كي دي مستقيما قرآن او حديث ته رجوع وكړي او بيا دي په خپله رايه او

۲ ص : ۳۰۸

مستقيما دقرآن او حديث څخه دمسئلواستنباط نه سي كولاى، په خطاب كي داخبره پر دوى باندي لازمه كړل سوې ده ،چي دوى به دالله جل جلاله او رسول الله صلى الله عليه وآله وسلم اطاعت كوي داطاعت طريقه داده ،چي دوى به اولي الامر يعني دعالمانو څخه دمسئلو پوښتني كوي او بيا به عمل په كوي ، ددغه آيت په دوهمه جمله كي بيا وعالمانو يعني مجتهدينو ته خطاب دئ او الله جل جلاله ورته فرمايلي دي ،چي كه تاسوته په كومه مسئله كي اختلاف پيدا سو نو قرآن او حديث ته رجوع وكړئ او دخپل فهم ، بصيرت او فكر په كار اچولو سره دقرآن او حديث څخه مسئلې استنباط كړئ خلاصه دا ،چي دپورتني آيت په لومړۍ جمله كي مقلدينو ته دتقليد كولو امر سوى دئ او په دوهمه جمله كي يې مجتهدينو ته داجتهاد حكم سوى دئ.

**دوهم آيت:**

الله جل جلاله فرمايي:

وَإِذَا جَآءَهُمۡ أَمۡرٌ مِّنَ ٱلۡأَمۡنِ أَوِ ٱلۡخَوۡفِ أَذَاعُواْ بِهِۦ ۖ وَلَوۡ رَدُّوهُ إِلَى ٱلرَّسُولِ وَإِلَىٰٓ أُوْلِي ٱلۡأَمۡرِ مِنۡهُمۡ لَعَلِمَهُ ٱلَّذِينَ يَسۡتَنۢبِطُونَهُۥ مِنۡهُمۡ ۗ .....(1)

ژباړه : كله ،چي دامن او ويري اړوند كوم كار پېښ سي نو دوى يې نشر كړي (كه دوى تر نشر وړاندي دغه خبره) رسول الله صلى الله عليه وآله وسلم ته راجع كړې واى او خپل اولي الامر ته يې راجع كړې واى نو په دوى كي ،چي كوم خلك استنباط كولاى سي هغوى به حقيقت حال ډېر ښه معلوم كړى واى.

[1]: نساء ، اية ٨٣

دپورتني آيت شانزول داسي و ،چي درسول اللهﷺ په زمانه کي ،چي به کله څه دويري او يا دامن خبره پېښه سوه نو ددغه زمانې منافقينو به دغه خبره پر څو بنې باندي واړول څو په ښارونو کي دويري فضا خپره کړي ، دمنافقانو ددغه کار تر اغېز به ځيني ساده مسلمانان لاندي راغلل او دوی به هم داخبري کولې څو اللهﷻ آيت کريمه نازل کړ، او دوی يې ددغه کار څخه منعه کړه اولارښوونه يې ورته وکړه ،چي کله تاسو ته کومه دامن او ويري خبره ورسيږي نو ددې پرځای ،چي تاسو پرخپل سرباندي عمل کوئ لومړی داخبره اولي الامر ته ورسوئ په هغو کي ،چي کوم خلک دتحقيق او استنباط څښتنان دي هغه به دخبري اساس معلوم کړي ،تاسو ته به يې بيان کړي بيا به تاسو په اصلي خبره خبر سئ ، خلاصه داچي دپورتنی آيت څخه معلوميږي ،چي دمسلمان کار دا نه دئ ،چي هره خبره يې تر غوږه ورسېده بايد دستي په خپل فکر عمل په وکړي بايد لومړی داخبره پوهانو ته ورسوي هغو ،چي کوم نظر ورکړ، په هغه باندي بيا عمل وکړي.

پورتنی آيت که څه هم په يوه خاصه موضوع کي نازل سوی دئ مګر دتفسير او اصول فقه دا منل سوې قاعده ده ،چي کله دمسائلو او احکامو استنباط دقرآن څخه کېږي نو که څه هم شان نزول يې خاص وي پاملرنه ورته پکار نه ده دقرآن دالفاظو عموميت ته پاملرنه پکار ده او

ورسيږي هغوی حق نه لري ،چي په خپل سر باندي او په خپل فکر سره پرېکړه وکړي بايددوی هغه کسانو ته رجوع وکړي ،چي هغوی داستنباط اهليت او وړتيا ولري کله ،چي هغوی دخپل بصيرت او پوهي

په رڼا کي کوم حکم وکړ، عام خلک دي بيا په هغه سره عمل وکړي .
همدغه کار ته تقليد ويل کېږي.
امام رازي رحمه الله دپورتني آيت لاندي ليکي:
فثبت ان الاستنباط حجة والقياس اما استنباط او داخل فيه فوجب ان يکون حجة اذا ثبت هذا فنقول : الاية دالة علي امور احدها ان في احکام الحوادث مالايعرف بالنص بل بالاستنباط وثانيها ان الاستنباط حجة وثالثها ان الامي يجب عليه تقليد العلماءفي احکام الحوادث.([1])
ژباړه : نو داخبره ثابته سوه ،چي استنباط حجت دئ او قياس يا خو خپل استنباط دئ اويا په دې کي داخل دئ په هر صورت قياس هم حجت دئ کله ،چي داخبره ثابته سوه نو موږ وايو : پورتنی آيت پر څو خبرو باندي دلالت کوي : لومړی داچي په نوو پيدا سوو مسائلو کي ځيني داسي مسئلې سته ،چي دنص څخه په څرګند ډول نه معلوميږي بلکي په استنباط معلوميږي، دوهمه خبره دا معلومه سوه ،چي استنباط حجت دئ ، دريمه خبره دا معلومه سوه ،چي پر امي باندي لازمه ده ،چي په نوو پيدا سوو مسائلو کي دعلماوو تقليد وکړي.
ځينو علماوو پر پورتنی خبر باندي اعتراض کړی دئ ،چي په آيت کريمه کي خو دجنګ بيان سوی دئ دامن حالات به څنګه دجنګ پر
(

،چي دآيت عامو الفاظو ته اعتبار ورکول کېږي او دشانزول خاصو

1: تفسير کبير ج ۲۷۲
2: تحريک ازادي فکر مجله ،ص : ۳۱ دمولانا محمد اسماعيل سلفي دلوري څخه

حالاتو ته اعتبار نه ورکول کېږي دهمدې خبرې په تائيد امام رازي رحمه الله ليکي:

ان قوله (واذا جاءهم امر من الامن او الخوف) عام في كل ما يتعلق بالحروب وفيما يتعلق بسائر الوقائع الشرعية لان الامن والخوف حاصل في كل ما يتعلق بباب التكليف فثبت انه ليس في الايت ما يوجب تخصيصها بامر الحروب.([1])

ژباړه : دالله جل جلاله دا وينا ،چې کله دامن اوويرې خبره پېښه سي ـ دالله جل جلاله دغه حکم عام دئ په جنګې اونورو ټولو شرعي چارو پورې اړه لري ځکه امن او وېره داسي څه دي ،چې دتکليف په هر ډګر پورې اړه لري بالاخره داخبره ثابتيږي ،چې په آيت کي ،چې کوم امر سوی دئ يوازې په جنګي چارو پورې اړه نه لري.

همدا ډول امام ابوبکرحصاص رحمه الله هم دپورتني اعتراض جواب په همدغه ډول کړی دئ او ورسره تر څنګ يې دځينو نورو شبهاتو ليرې والی هم کړی دئ ، همدا لامل دئ ،چې داهل حديثو مشهور عالم نواب صديق حسن خان پورتني آيت دقياس دجواز لپاره دليل بللی دئ ځکه نوموړی عالم په خپل تفسير کي داسي ليکي:

في الاية اشارة الي جواز القياس وان من العلم ما يدرک بالاستنباط.([2])

ژباړه : په پورتني آيت کي دقياس جواز ته اشاره ده ځکه ځيني پوهه په استنباط سره درک کېدای سي.

که پورتنی آيت يوازې دامن او ويرې دزمانې پورې خاص سي او ددغه زمانې پرته بل شي په ثابت نه سي نو دپورتني آيت څخه به څنګه قياس ثابت سي.

---

[1]: تفسير کبير ج ۲ ص

## دريم آيت:

الله جل جلاله فرمايي:

فَلَوْلَا نَفَرَ مِن كُلِّ فِرْقَةٍ مِّنْهُمْ طَآئِفَةٌ لِّيَتَفَقَّهُوا۟ فِى ٱلدِّينِ وَلِيُنذِرُوا۟ قَوْمَهُمْ إِذَا رَجَعُوٓا۟ إِلَيْهِمْ لَعَلَّهُمْ يَحْذَرُونَ ﴿١٢٢﴾ (1)

ژباړه: ولي ددوی څخه يوه ډله دهري ډلي څخه نه وزي څو په دين کي پوهه لاسته راوړي تر بېرته راتګ وروسته خپل قوم وويروي ښايي خپل قوم به دا الله جل جلاله دنافرمانۍ څخه وساتي.

په پورته آيت کريمه کي پر دې خبره باندي ټينګار سوی دئ، چي ټول مسلمانان دي په جهاد او نورو کارونوکي بوخت نه پاتيږي بلکي يوه ډله دي دا الله جل جلاله په دين باندي دپوهاوي لپاره ځانونه وقف کړي څو خلکو ته دا الله جل جلاله ددين احکام ورسوي هغو خلکو ته، چي ځانونه يې ددين په نورو ښانګو بوخت کړي دي او ددين دا حکامو دزده کړي لپاره يې وخت نه دئ پيدا کړی، همدا لامل دئ، چي پورتنی آيت پر هغو کسانو باندي، چي علم يې زده کړی دئ دا خبره لازمه کړې ده، چي دوی به خلکوته دا الله جل جلاله ددين احکام ورزده کوي او پر هغو کسانو باندي

دا الله جل جلاله ... رحمه الله

پر همدې خبره باندي دتبصرې په بڼه ليکي:

فاوجب الحذر بانذارهم والزم المنذرين قبول قولهم.([1])

---

[1]: سورة توبة الاية

پر علماوو لازمه ده ،چي خلک دا الله جل جلاله ښخه وېږوي او پر خلکو باندي لازمه ده ،چي ددوی قول ومني.
يعني علماوو ،چي دا الله جل جلاله ددين احکام يې زده کړی دي داخبره پر لازمه ده ،چي الهي احکام خلکو ته ورسوي او پر خلکوباندي ددوی اطاعت لازم دئ ،حاصل دا چي خلکو ته پکارده ،چي دا الله جل جلاله دپورتني آيت حکم ومني دعلماوو خبري دي ومني او دا الله جل جلاله دنافرمانۍ ښخه دي ځانونه خلاص کړي.

## څلورم آيت:

الله جل جلاله فرمايي:

فَسۡـَٔلُوٓاْ أَهۡلَ ٱلذِّكۡرِ إِن كُنتُمۡ لَا تَعۡلَمُونَ ﴿٤٣﴾ (2)

ژباړه : که تاسو نه پوهېږئ نو دا هل ذکر ښخه پوښتنه وکړئ.
په پورتني آيت کي انسانانو ته اصولي لاربنوونه سوې ده ،چي کوم کسان ،چي ديوه فن په اړه معلومات نه لري هغوی دي دعالمانو ښخه پوښتنه وکړي او بيادي عمل په وکړي همدې کارته تقليد ويل کېږي.
علامه الوسي رحمه الله ليکي:

واستدل بها ايضا علي وجوب المراجعة للعلماء فيما لايعلم وفي الاکليل: للجلال الدين السيوطي انه استدل بها علي جواز تقليد العامي في الفروع.(3)

ژباړه :په پورتني آيت کي پردې خبره باندي هم دليل ويل کېدای سي ،چي په هغه خبرو کي ،چي چاته يې علم نه وي علماوو ته رجوع کول

[1]: احکام القران لجصاص ج : ۲ ص : ۲٦۲ باب طاعة الرسول الله صلی الله علیه وسلم.
[2]: سورة النحل الاية ۴۳
[3]: روح المعاني ج : ۱۴ ص : ۱۴۸.

رحمه الله

فروعي مسئلو کي تقليد کول جايز دئ.
که پورتنی آيت کريمه دتقليد لپاره ددليل په توګه وويل سي نو ځينو خلکو ته دا نيوکه ور پرزړه کېږي ،چي کله دمکې مشرکينو دحضرت صلى الله عليه وآله وسلم

جل جلاله

وَمَآ أَرۡسَلۡنَا مِن قَبۡلِكَ إِلَّا رِجَالاً نُّوحِىٓ إِلَيۡهِمۡۚ فَسۡـَٔلُوٓاْ أَهۡلَ ٱلذِّكۡرِ إِن كُنتُمۡ لَا تَعۡلَمُونَ ﴿٤٣﴾ [1]

په پورتني آيت کي ،چي(اهل ذکر ) ياد سوي دي ،دځينو مفسرينو په آند داهل کتابو علماء ځيني مراد دي ، دځينو په آند هغه علماء ځيني مراد دي ،چي درسول الله صلى الله عليه وآله وسلم

آيت مطلب دادئ ،چي مخکني ټول انبياء عليهم السلام انسانان وه ملايکي نه وې له همدې دپورتني آيت دسباق ، سوق او سياق څخه هيڅ دتقليد او اجتهاد خبره نه معلومېږي؟

---

[1]: سورة النحل الاية ۴۳

دپورتني سوال جواب دادئ : ،چي دآيت شريف څخه په دلالت النص

وع کوي او دغه اصل دپورتني آيت څخه معلوميږي ،بالاخره پورتنی آيت دتقليد لپاره استدلال کېدای سي ، بله خبره داده ،چي مخکي موږ ويلي وه ،چي ټول فقهاء او مفسرين لاندي قاعده بيانوي:

همدا خبره دتقليد مفهوم دئ ځکه خطيب بغدادي رحمه الله فرمايي:

اما من يسوغ له التقليد فهو العامي الذي لايعرف طريق الاحكام الشرعية فيجوز له ان يقلد عالما ويعمل بقوله قال الله تعالي فَسۡـَٔلُوٓاْ أَهۡلَ ٱلذِّكۡرِ إِن كُنتُمۡ لَا تَعۡلَمُونَ ﴿٤٣﴾ [1]

ژباړه : داچي تقليد به چاته جايز وي (بايد وويل سي ،چي تقليد) دهغه

---

1 رحمه الله ٢

ژباړه : قدوة دې ته ويل کيږي ،چې دچا پر سنت باندي عمل وکړل سي.
([1])

پورتنی لفظ په قرآنکريم کي دانبياؤ عليهم السلام او صالحينو داطاعت لپاره استعمال سوی دئ ځکه الله جل جلاله فرمايي:

أُوْلَـٰٓئِكَ ٱلَّذِينَ هَدَى ٱللَّهُ ۖ فَبِهُدَىٰهُمُ ٱقْتَدِهْ ۗ [2])

ﷺ

رضي الله عنه ﷺ رضي الله عنه .(3)

ژباړه : ابوبکر رضي الله عنه ﷺ

رضي الله عنه

په مسند احمد کي دحضرت ابووائل رحمه الله څخه روايت دئ ، دی مبارک فرمايي:

قَالَ جَلَسْتُ إِلَى شَيْبَةَ بْنِ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ فِي هَذَا

أَدَعَ فِي الْكَعْبَةِ صَفْرَاءَ وَلَا النَّاسِ قَالَ قُلْتُ لَيْسَ

ذَلِكَ لَكَ قَدْ سَبَقَكَ لَمْ ذَلِكَ فَقَالَ (4)

---

[1]: لسان العرب ج : ٢ ٣١

[2]: الانعام ،اية ٩٠

[3]: صحيح بخاري ج : ١ ص

[4] ص :

رحمه الله رحمه الله

رضي الله عنه

رضي الله عنه

منځ کي وويشم، شيبه وايي : ما ورته وويل : (اې عمره رضي الله عنه

صلى الله عليه وآله وسلم رضي الله عنه

رضي الله عنه

همدا ډول په مسند احمد کي دحضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ ،چي يوه ورځ رسول الله صلى الله عليه وآله وسلم په يوه مجلس کي وفرمايل: اوس به ستاسو په مجلس کي يو جنتي سړی را داخل سي، دلږ وخت تېرېدو وروسته يو انصاري صحابي مجلس ته راغلی ، په دوهمه ورځ هم دغسي پېښه رضي الله عنه

رضي الله عنه داسي ګومان و

،چي دغه صحابي به ډېر عبادت کوي (چي رسول الله صلى الله عليه

رضي الله عنه

دابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ ،چي رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: کوم سړي که دعلم پرته فتوا ورکړل نو ګناه به يې هم دده په غاړه وي.
پورتني حديث هم دتقليد پر ثبوت باندي ښکاره دليل دئ ځکه په پورتني حديث کي ويل سوي دي ،چي چا غلطه فتوا ورکړل نو ټوله ګناه دده پر غاړه لويږي نو که تقليد جايز نه وای نو ټوله ګناه ولي پرده باندي لوېدل بلکي پر مستفتي باندي به هم ګناه وای ،چي ولي يې ددغه مسئلې دصحت تحقيق نه دئ کړی.
دپورته خبري په نظر کي نيولو سره داخبره ثابته سوه ،چي کوم کس ،چي علم نه لري پر هغه باندي فقط دومري خبره لازمه ده ،چي دخپلو معلوماتو له مخي ديوه داسي عالم څخه پوښتنه وکړي ،چي هغه په قرآن او حديث باندي پوهيږي نور نو که هغه عالم غلطه فتوا ورکړل ټوله ګناه يې دهغه عالم پر غاړه ده ، پوښتونکی دګناه څخه خلاص دئ ګناه يې يوازي پر عالم باندي ده.
په يوه بل روايت کي راځي:

٤: وعن إبراهيم بن عبد الرحمن العذري قال : قال رسول الله صلى الله عليه وسلم : " يحمل هذا العلم من كل خلف عدوله ينفون عنه تحريف الغالين وانتحال المبطلين وتأويل الجاهلين " . رواه البيهقي([1])

ژباړه : دابراهيم بن عبدالرحمن العذري رحمه الله څخه روايت دئ ، دی وايي ،چي رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: دا علم به دهر راتلونکي نسل هغه ثقه خلک زده کوي ،چي دغلوکونکو تحريف ، ددرواغجنانو درواغ او دجاهلانو تاويل به ليري کوي.

---

[1]: مشکوة ، ج : ١ ص : ٣٧، كتاب العلم ، الفصل الثاني.

په پورتني حديث کي دجاهلانو او باطلو انسانانو بدي بيان سوې ده او دا ويل سوي دي ،چي دجاهلانو دتاويل او درواغو ردول دعلماوو فريضه ده ، همدا ډول په حديث کي په ښکاره ډول ويل سوي دي ،چي څوک په قرآن او حديث کي مجتهدانه بصيرت نه لري هغوی نسي کولای ،چي پر خپل فهم او فکر باندي اعتماد وکړي بيا دقرآن او حديث تاويلات وکړي،پکار داده ،چي دقرآن او حديث دښه پوهاوي لپاره دعلم څښتنانو ته رجوع وکړل سي. په پورتني حديث کي داخبره په ښکاره ډول بيان سوې ده ،چي دقرآن او حديث تاويلات يوازي دلوړو عالمانو کار دئ هغه خلک ،چي په علم کي پوره مهارت نه لري هغوی هيڅ حق نه لري ،چي دقرآن او حديث تاويلات وکړي او ددې کار په حديث کي په کلکه بدي او مذمت بيان سوی دئ ، دپورته خبرو څخه معلوميږي ،چي دقرآن او حديث دتاويل لپاره لږ علم بسنه نه کوي بلکي ددې کار لپاره مجتهدانه بصيرت او پوره مهارت ته اړتيا سته.

په بخاري شريف کي تعليقًا او په مسلم شريف کي سندا يو حديث راغلی دئ ،چي ابوسعيد خدري ﷜ روايت کوي ،چي ځيني اصحابان مبارکان نبوي مسجد ته نا وخته راتلل نو رسول الله ﷺ هغوی ته [redacted] او په مخکني صف کي ددريدو امر وکړ او ټينګار يې پر وکړ او دايې هم ورته وفرمايل:

ايتموا بي وليأتم بکم من بعدکم.([1])

---

[redacted] ا ص : ٦٩.

درسول اللهﷺ ددغه مبارکي وینا دوه مطلبه کېدای سي یو داچي مخکني خلک دي رسول اللهﷺ ته وګوري او اقتدا دي پسي وکړي او دشا خلک دي دمخکي صف خلکو ته وګوري او اقتدا دي پسي وکړي. دوهم مطلب دادئ ،چي اصحابان دي ژر ، ژر راسي څو درسول اللهﷺ دلمانځه طریقه ښه زده کړي څکه هغه نسلونه ،چي وروسته راځي هغوی به دااصحابانو څخه درسول اللهﷺ دلمانځه طریقه زده کوي ، په دوی پسي به اقتدا کوي او ددوی تقلید به کوي.

دپورتني حدیث په شرح کي حافظ ابن حجر رحمه الله لیکي:

وقیل معناه تعلموا مني احکام الشریعة ویتعلم منکم التابعون بعدکم وکذالک اتباعهم الي انقراص الدنیا.([1])

ژباړه : ځینو ویلي دي ،چي دپورتني حدیث معنا داده ،چي تاسو زما څخه دشریعت احکام زده کړئ، تابعین به ستاسو څخه شرعي احکام زده کړي، همدا ډول به ددوی متبعین شرعي احکام ددوی څخه زده کوي او دا لړۍ به ددنیا ترپای ته رسېدو پوري روانه وي.

په مسند احمد کي حضرت سهل بن معاذ دخپل پلار څخه روایت کوي:

ان امراة اتته فقالت یارسول الله انطلق زوجي غازیا وکنت اقتدي بصلاته اذا صلی

(2)

جل جلاله ﷺ

رسولهﷺ! زما خاوند غزا ته تللی دئ، زما خاوند داسي و ،چي کله

---

[1]: فتح الباري ج : ۲ ص : ۱۷۱ ، ط: میریه ، س : ۱۳۰۰

[2]: مسند احمد ، ج رضي الله عنه رحمه الله في مجمع الزوائد وقال رواه احمد وفیه ذبان بن فائد وثقه ابوحاتم وضعفه جماعة وبقیة رجاله ثقا ت ، الفتح الرباني ج

به يې لمونځ كاوه ما به اقتدا پسې كول بلكې په ټولو لونځو كې ما په خپل خاوند پسې اقتدا كول او دهغه پيروي به مې كول، اوس ما ته يو داسې كار راوښيه ،چې زه دخپل خاوند سره په ثواب كې برابره سم څو دی بېرته راځي.

پورته حديث ته كه وكتل سي په ښكاره ډول ځني معلوميږي ،چې هغې ښځې رسول اللهﷺ ته وويل ،چې زه دخپل خاوند تقليد كوم ، په لمانځه او نور كارونو كې يې اطاعت كوم، رسول اللهﷺ ددې دتقليد خبره واوريده هيڅ ملامتي يې نه پر وويل ،چې ته ولي تقليد كوې؟

حضرت عبدالله بن عمرو رضي الله عنهما په ترمذي كې روايت كوي ،چې رسول اللهﷺ فرمايي: په كوم كس كي ،چې دوه خصلتونه پيدا سي الله جل جلاله به هغه كس صابر او شاكر وليكي ، هغه خصلتونه دادي:

من نظر في دينه الي من هو فوقه فاقتدى به ونظر في دنياه الي من هو دونه فحمد لله.(1)

ژباړه : كه چا په دين كي هغه چاته وكتل ،چې تر ده لوړ و او بيا يې پيروي وكړه او په دنيا كي يې و هغه چاته وكتل ،چې ترده كښته وي بيا يې دالله جل جلاله حمد ووايه.

## داصحابانو رضي الله عنهم په وخت كي ددوی تقليد كول

داصحابانو رضي الله عنهم [illegible]

---

(1) [illegible] رحمه الله ج : ۹ ص : ۱۳ ابواب القيامة.

هغوی به په قرآن او حديث کي پوهه درلوده بيا به دوی عمل په کاوه او تقليد به يې کاوه. پاته دي نه وي، چي دداسي اصحابانو څخه مطلق او مشخص دواړه تقليدونه ثابت دي، دمطلق تقليد خو دومره پيښني ستړه، چي درست کتاب ځني جوړېږي خو ديېلګي لپاره به يې څو مثالونه دلته راوړو:

١: عن ابن عباس قال: خطب عمر بن الخطاب الناس بالجابية وقال: يا أيها الناس من أراد أن يسأل عن القرآن فليأت أبي بن كعب ومن أراد أن يسأل عن الفرائض فليأت زيد بن ثابت ومن أراد أن يسأل عن الفقه فليأت معاذ بن جبل ومن اراد أن يسأل عن المال فليأتني فإن الله جعلني له والياً وقاسماً. رواه الطبراني في الأوسط ([1])

ژباړه: ابن عباس رضي الله عنه فرمايي: عمر بن خطاب رضي الله عنه په جابيه ځای کي خطبه وويل، په خطبه کي يې داسي وفرمايل: اې خلکو! که څوک غواړي، چي قرآن زده کړي نو ابی بن کعب رضي الله عنه ته دي ورسي، که څوک غواړي، چي ميراث زده کړي زيد بن ثابت رضي الله عنه ته دي ورسي، که څوک په فقه کي زده کړه غواړي معاذ بن جبل رضي الله عنه ته دي ورسي او که څوک مال غواړي ماته دي راسي ځکه الله جل جلاله والي او وېشونکی ګرځولی يم.

رضي الله عنه

، چي تاسو په فقه، ميراث او تفسير په علومو کي دهمدغو علومو ماهرينو ته مراجعه وکړئ، پوهه ځني تر لاسه کړئ او بيا عمل په

[1]: ذکر الهيثمي رحمه الله وفيه لم ار من ذکره. مجمع الزوائد، ج: ١ ص

: ١١١، والخطيب في تاريخ بغداد ج: ١ ص:

وکړئ ، دا هم څرګندە دە ،چي خلک دوە ډولە دي ځيني هغە خلک دي ،چي پوهە پە يوشي کي ترلاسە کولای سي خو ددليل دزدە کولو جوګە نە وي ، ځيني بيا داسي کسان دي ،چي پوهە ددليل سرە ترلاسە کولای سي، پورتنۍ خبرە دواړو ډلو کسانو تە راجع دە يعني کوم کسان ،چي ددليل جوګە دي هغە دي دعلماوو څخە پوهە ددليل سرە ترلاسە کړي او کوم کسان ،چي ددليل جوګە نە دي هغە دي پوهە ترلاسە کړي ددليل غوښتنە دي نە کوي ددليل پرتە دي عمل پە وکړي.
داصحابانو پە زمانە کي کومو اصحبانو ،چي بە خپل ځانونە ددې جوګە نە ګڼل ،چي دقرآن او حديث څخە دي استنباط وکړي هغو بە دعلم دماهرينو اصحبانو څخە پوښتنە کول ، مسايل بە يې ځني زدە کول او بيا بە يې عمل پە کاوە ،چي مثالونە بە يې وروستە راسي.

۲ : عَنْ سَالِمِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ أَنَّهُ سُئِلَ عَنْ الرَّجُلِ يَكُونُ لَهُ الدَّيْنُ عَلَى الرَّجُلِ إِلَى أَجَلٍ فَيَضَعُ عَنْهُ صَاحِبُ الْحَقِّ وَيُعَجِّلُهُ الْآخَرُ فَكَرِهَ ذَلِكَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ وَنَهَى عَنْهُ.([1])

ژباړە : سالم بن عبداللهؓ فرمايي: دعبدالله بن عمرؓ څخە پوښتنە وسوە ،چي ديوە کس پر بل سړي باندي تر ټاکلي وخت پوري



٢٧٩، ماجاء في الربا في الدين.

پورتنۍ مسئله ،چي ابن عمر رضي الله عنهما جواب کړه په دغه مسئله کي کوم ځانګړی آيت يا حديث نه دئ راغلی ، کوم جواب ،چي ابن عمر رضي الله عنهما ووايه دا دده خپل اجتهاد و ، ابن عمر رضي الله عنهما ددليل پرته هغه ته جواب ووايه هغه کس هم ددليل پرته ومانه دکوم دليل غوښتنه يې ونه کړه، همدغه کار ته تقليد ويل کېږي.

۳: عن عبدالرحمن قال سالت محمد بن سيرين عن دخول الحمام ، فقال : كان عمربن الخطاب رضي الله عنه يكرهه.(1)

ژباړه : عبدالرحمان وايي ،چي ما دمحمد بن سيرين رحمه الله څخه پوښتنه وکړه ،چي دغسل لپاره حمام ته تلل جايز دي؟ ده په جواب کي راته وويل: حضرت عمر رضي الله عنه داکار نه خوښاوه.

تاسو وګورئ ! محمد بن سيرين رحمه الله څومره جليل القدر تابعي دئ بيا هم دحضرت عمر رضي الله عنه فقط په دومره وينا قناعت کوي ،چي هغه يې يوازي مکروه ګڼي او دهيڅ ډول دليل غوښتنه نه کوي سره ددې ،چي په دې اړه زيات مرفوع حديثونه هم سته ،چي يو يې خپله حضرت عمر رضي الله عنه روايت کړی دئ:

۴:عن سُلَيْمَانُ بْنُ يَسَارٍ أَنَّ أَبَا أَيُّوبَ الْأَنْصَارِيَّ خَرَجَ حَاجًّا حَتَّى إِذَا كَانَ بِالنَّازِيَةِ مِنْ [illegible] وَإِنَّهُ قَدِمَ عَلَى عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ [illegible] ذَلِكَ لَهُ فَقَالَ عُمَرُ [illegible] ثُمَّ قَدْ حَلَلْتَ فَإِذَا [illegible] وَأَهْدِ مَا اسْتَيْسَرَ مِنْ الْهَدْيِ.(2)

ژباړه : سليمان بن يسار رحمه الله فرمايي: ابو ايوب انصاري رضي الله عنه [illegible]

---

[illegible] ١ ص [illegible] ، ح : ١٨٧)

پرلاري ديوځای نوم دئ ـ سورلۍ يې ورکه سوه ، دلوی اختر دمياشتي پر لسمه نېټه ورسېدئ پر دغه وخت دحج دارکانو وخت تېر سوی و ، ابوايوب انصاري رضي الله عنه دعمر رضي الله عنه لوري ته ورغلی خپل ټول حالات يې ورته بيان کړ، يعني پوښتنه يې ځني وکړه ،چي زما څخه دحج مناسک تېر سوه زه اوس څه وکړم؟ عمر رضي الله عنه په جواب کي ورته وويل: ته ورسه داسي کړني وکړه لکه يو عمره والا ،چي يې کوي يعني دعمرې ارکان ترسره کړه، بيا ځان حلال کړه کله ،چي راتلونکی کال راسي بيا دحج ارکان ترسره کړه کوم حيوان ،چي دي په توان وي هغه هديه کړه بيا ځان حلال کړه.

په پورتني حديث کي که تاسو وګورئ ابو ايوب انصاري رضي الله عنه دحضرت عمر رضي الله عنه څخه دمسئلې پوښتنه وکړه هغه جواب ورکړ، کله ،چي ابو ايوب انصاري رضي الله عنه جواب واورېدئ دهيڅ دليل غوښتنه يې ونه کړه بلکي دحضرت عمر رضي الله عنه پر پوهه او علم يې اعتماد وکړ او بيا يې عمل په وکړئ ، نه هم حضرت عمر رضي الله عنه ابو ايوب انصاري رضي الله عنه ته دليل وړاندي کړ، همدې کار ته تقليد ويل کېږي.

٥: وعن مصعب بن سعد قال كان أبي إذا صلى في المسجد تجوز وأتم الركوع والسجود وإذا صلى في البيت أطال الركوع والسجود والصلاة قلت يا أبتاه إذا صليت في المسجد جوزت وإذا صليت في البيت أطلت قال يا بني إنا أئمة يقتدى بنا.([1])

مصعب بن سعد رضي الله عنه فرمايي: زما پلار سعد ،چي به کله په مسجد کي لمونځ کاوه نو په مختصر ډول به يې لمونځ کاوه خو کله ،چي به يې په کور کي لمونځ کاوه نو ډېر اوږد به يې کاوه ، ماپوښتنه ځني وکړه ،چي

1: رواه الطبراني في الكبير ورجاله رجال الصحيح. مجمع الزوائد للهيثمي ج : ١ ص : ١٨٢ ، باب الاقتداء بالسلف.

اې پلاره ! ته په کور کې اوږد او په مسجد کې مختصر لمونځ کوې په دې کې څه حکمت دئ؟ پلار په جواب کې راته وویل: اې زویه! موږ دقوم امامان یو خلک په موږ پسې اقتداء کوي که موږ په مسجد کې اوږد لمونځ وکړو خلک به یې هم کوي او داکار به پر ځان لازم وګڼي حال دا چې دومره اوږد لمونځ لازم نه بلکې تقوا ده.

دپورتني روایت څخه معلومیږي چې دمخورو اصحابانو داقوالو ترڅنګ ددوی مبارکانو دافعالو تقلید هم کیږي یعنې داچې تش ددوی افعال ولیدل سي په کټ مټ ډول یې تقلید وسي ، په داسې حالت کې ،چې یوازې ددوی په لیدلو په اعمالو کې تقلید کیږي ، ددلیل غوښتولو خو هیڅ فکر هم نه پیداکیږي همدا وجه ده چې دوی مبارکان به دومره باریکیو ته متوجه کېدل.

په موطا امام مالک رحمه الله کې روایت دئ:

أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّاب رَأَى عَلَى طَلْحَةَ بْنِ عُبَيْدِ اللَّهِ ثَوْبًا مَصْبُوغًا وَهُوَ مُحْرِمٌ فَقَالَ عُمَرُ مَا هَذَا الثَّوْبُ الْمَصْبُوغُ يَا طَلْحَةُ فَقَالَ طَلْحَةُ يَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ إِنَّمَا هُوَ مَدَرٌ فَقَالَ عُمَرُ إِنَّكُمْ أَيُّهَا الرَّهْطُ أَئِمَّةٌ يَقْتَدِي بِكُمْ النَّاسُ فَلَوْ أَنَّ رَجُلًا جَاهِلًا رَأَى هَذَا الثَّوْبَ لَقَالَ إِنَّ طَلْحَةَ بْنَ عُبَيْدِ اللَّهِ كَانَ يَلْبَسُ الثِّيَابَ الْمُصَبَّغَةَ فِي الْإِحْرَامِ فَلَا تَلْبَسُوا أَيُّهَا الرَّهْطُ شَيْئًا مِنْ هَذِهِ الثِّيَابِ الْمُصَبَّغَةِ.[1]

اې طلحة! دادې څنګه رنګ سوي جامې اغوستې دي؟ [redacted] په جواب کې وویل : اې امیرالمؤمنین! داجامې په داسې رنګ ، رنګ کړل سوي دي ،چې خوشبویه نه دي ، (داسې رنګ سوي جامې ،چې

[1] [redacted] ۱ ص [redacted] ، احادیث عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه

خوشبويي ونه لري په احرام كي اغوستل جايز دي،) عمر رضي الله عنه ورته وفرمايل: اې طلحة! تاسو امامان ياست خلک ستاسو کړنو ته ګوري بيا ستاسو پيروي كوي، كه يو ناپوه او ناخبره كس ستاسو رنګ سوي جامې ويني نو هغه به ووايي ،چي طلحة بن عبيدالله رضي الله عنه رنګ سوي جامې اغوستي وې نو هغه به هم داكار وكړي خو دافكر به نه كوي ،چي طلحة بن عبيدالله رضي الله عنه داسي رنګ سوي جامې اغوستي وې ،چي خوشبويي يې نه درلوده ، دوى به دافرق نه كوي هرډول رنګ سوي جامې به اغوندي.

يوه ورځ حضرت عمر رضي الله عنه عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه په داسي حالت كي وليدئ ،چي يو ډول موزې يې په پښو وې نو حضرت عمر رضي الله عنه ورته وويل:

...فَقَالَ عُمَرُ عَزَمْتُ عَلَيْكَ لَّانَزَعْتَهُمَا فَإِنِّي أَخَافُ أَنْ يَنْظُرَ النَّاسُ إِلَيْكَ فَيَقْتَدُونَ بِكَ([1])

ژباړه : زما قصد سي ،چي دغه موزې در څخه وكاږم ،ځكه زه وېرېږم ،چي خلک به تا ويني او ستا پيروي به وكړي.

پورتنيو درو پيښو ته كه وكتل سي په څرګند ډول معلوميږي ،چي هغه اصحابان ،چي په علم كي يې مهارت درلودئ سره ددې ،چي دهغو

غوښتلو فكر لاهم نه پيداكيږي همدا وجه وه چي دوى مباركانو به په

[1]: الاستيعاب لابن عبدالبر تحت الاصابة ج : ٢ ... ج : ٢ ص ... ٢ ص ... .

خپلو اعمالو ترسره کولو کي ډېر احتياط څخه کار اخيستی او نورو ته به يې هم دا توصيه کول ،چي په اعمالو کي د احتياط څخه کار واخلي.

**٧: وعن حارثة بن مضرب قال كتب عمر إلى أهل الكوفة قد بعثت عمارا أميرا وعبد الله بن مسعود معلما وزيرا وهما من النجباء من أصحاب محمد صلى الله عليه وسلم من أهل بدر فاقتدوا بهما واسمعوا من قولهما ... (1)**

ژباړه : دحارثة بن مضرب څخه روايت دئ ،چي حضرت عمر ﷺ عبدالله بن مسعود ﷺ دکوفې خلکو ته ولېږئ او بيا يې دکوفې خلکو ته يو ليک وليکئ په ليک يې دوی ته وليکل: ما تاسو ته عمار بن ياسر ﷺ داميرپه توګه در ولېږئ او عبدالله بن مسعود ﷺ مې دمعلم او وزيرپه توګه در ولېږئ دوی دواړه درسول اللهﷺ دسپېڅلو اصحابانو څخه دي ، بدريان صحابه دي تاسو يې تقليد وکړئ او ددوی ويناوو ته غوږ کښېږدئ.

**٨: ... فَمَنْ عَرَضَ لَهُ مِنْكُمْ قَضَاءٌ بَعْدَ الْيَوْمِ فَلْيَقْضِ بِمَا فِي كِتَابِ اللَّهِ فَإِنْ جَاءَ أَمْرٌ لَيْسَ فِي كِتَابِ اللَّهِ فَلْيَقْضِ بِمَا قَضَى بِهِ نَبِيُّهُ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَإِنْ جَاءَ أَمْرٌ لَيْسَ فِي كِتَابِ اللَّهِ وَلَا قَضَى بِهِ نَبِيُّهُ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلْيَقْضِ بِمَا قَضَى بِهِ الصَّالِحُونَ فَإِنْ جَاءَ أَمْرٌ لَيْسَ فِي كِتَابِ اللَّهِ وَلَا قَضَى بِهِ نَبِيُّهُ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَا قَضَى بِهِ الصَّالِحُونَ فَلْيَجْتَهِدْ رَأْيَهُ...(2)**

ژباړه : حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ دقضاء اصول بيانول په اصولو بيانولو کي يې داسي وفرمايل: کوم چاته که دقضا معامله ور دغاړه

1: رواه الطبراني ورجاله رجال الصحيح غير [illegible] ٩
ص: ٩١/ [illegible]
[illegible]
[illegible] ١ ص [illegible] ، مقدمة ، باب الفتيا وما فيه من الشده.

سوه نو فيصلې دي دالله جل جلاله په کتاب (قران) سره کوي ، که يې دکومې مسئلې حل په قرآن کې پيدا نه کړ، نو درسول الله صلى الله عليه وسلم داحاديثو په رڼا کې دي فيصله کوي ، که يې په قرآن او نبوي احاديثو کې حل پيدا نه کړ، نو دصالحينو او سلفو علماوو دويناوو مطابق دي مسئله حل کړي که يې په درو واړو کې حل پيدا نه کړ، نو په خپل اجتهاداو رايه دي مسئله حل کړي.

په پورتني روايت کې عبدالله بن مسعود رضي الله عنه څلور مرتبې بيان کړې دي لومړۍ داچې مسئله به دقرآن په رڼا کې حليږي ، دوهمه مرتبه داحاديثو ده ، دريمه مرتبه دسلفو صالحينو دويناوو ده ، څلورمه مرتبه داجتهاد او قياس ده.

په پورتنی روايت کې يوه خبره زياته دپام وړ ده هغه داچې لومړی مرتبه دقرآن ده دوهمه مرتبه دحديث ده نو په کومه مسئله کې ،چې قرآن ته رجوع وسي هيڅ يو عقل لرونکی کس ددې مطلب دا نه اخلي ،چې په داسي صورت کې دي نو حديث بېخي له پامه وغورځول سي او دقرآن تفسير ، ترجمه او مطلب اخستل دي په خپل فکر او رايه سره وسي بلکې دټولو علماوو پردې خبره اتفاق دئ ،چې دقرآن په تفسير کې بايد

،چې رجم په قرآن کې نه سته په دې عمل نه کړل کيږي (العياذ بالله) ځکه دزنا حکم واضح دئ کوم تفصيل ته اړتيانه لري حال داچې دا دټول امت پردې خبره اتفاق دئ ،چې رجم په احاديثو ثابت دئ بايد عمل په وسي .

همدا ډول دصالحينو ويناوو ته دريم مقام ورکړل سوی دئ په دې لحاظ که څوک په قرآن او احاديثو عمل کوي ددې معنا دا نه ده ،چي دصالحينو ويناوو ته دي هيڅ پاملرنه کېږي بلکي دقرآن او احاديثو تشريح اوتفصيل به دصالحينو او اسلافو دويناوو مطابق کېږي، ددوی دفيصلو په رڼا کي به په قرآن او حديث عمل کېږي ، دتقليد مفهوم اومطلب دادئ ،چي که کومه مسئله دقرآن او حديث څخه په څرګنده توګه نه معلومېدل نو بيا دي دبېلابيلو ممکنو معانيو څخه ديوې معنا په ټاکلو کي ديوه مجتهد قول ته وکتل سي او هغه معنا دي وټاکل سي لکه مخکي ،چي يې بيان وسو ،چي عبدالله بن مسعود ﷺ يو څوک قاضي ټاکلی و او بيا يې ورته توصيه کول.

دپورته خبرو څخه دا معلومېږي ،چي تقليد کول يوازي دجاهل کار نه بلکي علماوو ته هم پکاردئ ،چي په احکامو کي پر خپلو رايو باندي اعتماد ونه کړي بلکي داسي څوک ،چي په علم کي تر ده لوړ وي هغه ته دي وګوري او دويناوو تقليد دي يې وکړي دا بيا بېله خبره ده ،چي دجاهل او عالم دتقليد ترمنځ توپير سته ،چي وروسته به يې بيان راسي.

دپورتنۍ تشريح څخه دعلامه ابن القيم دويناوو ټول اعتراضات جواب سوه ،چي دپورتنۍ روايت پر استدلال باندي يې کړي وه.(1)

٩ : كان ابن عمر رضي الله عنهما لايقرء خلف الامام ، قال فسالت القاسم بن محمد عن ذالک

(1

1) ٢ ص .

ژباړه : حضرت سالم بن عبدالله رحمه الله فرمايي: ابن عمر رضي الله عنهما په امام پسي قرئت نه وايه نو ما دحضرت قاسم بن محمد رحمه الله څخه پوښتنه وکړه ،چي ابن عمر رضي الله عنهما ولي په امام پسي قرئت نه وايي ، حضرت قاسم رحمه الله په جواب کي راته وويل: که غواړي ،چي په امام پسي قرئت ووايي کولای سې ځکه دېرو داسي کسانو په امام پسي قرئت ويلی دئ ،چي ددې جوګه دي ،چي اقتدا پسي وسي او که ته غواړې ،چي قرئت په امام پسي نه ووايي نو هم کولای سې ځکه دېر داسي کسان سته ،چي په امام پسي يې قرئت نه دئ ويلی او هغه داسي کسان دي ،چي ددې وړ دي ،چي اقتدا پسي وسي.

حضرت قاسم رحمه الله ،چي دسترو تابعينو څخه دئ او دمديني داوو سترو فقهاوو له ډلي څخه دئ هغه په څرګند ډول دا جمله ويلې ده ،چي کله ددلايلو تعارض راسي نو بيا دي دهر امام په ښه نيت تقليد وکړل سي.

عن الحسن انه سئله رجل اتشرب من ماء هذه السقاية التي في المسجد فانها صدقة ، قال الحسن : قدشرب ابوبکر وعمر رضي الله عنهما من سقاية ام سعد فمه.([2])

ژباړه : په کنز العمال کي دطبقات ابن سعد په حواله يو روايت دئ ،چي [redacted] رضي الله عنه [redacted]

[redacted] رضي الله عنه په

جواب کي ورته وويل: حضرت ابوبکر رضي الله عنه او حضرت عمر رضي الله عنه [redacted]

[redacted] ٩٦ [redacted] رحمه الله [redacted]

[redacted] رحمه الله [redacted]

[redacted] قريب صدوق بهم.

[2]: کنزالعمال ، ج [redacted] ٣١٨، کتاب الزکات فصل في المصرف.

سعد دصدقه سوي ويالې څخه اوبه څښنلي دي نو ما هم دغسي وکړه لکه دوی دوو مبارکانو ،چي کړی وه.
که دغه روايت ته وکتل سي نو ګويا حضرت حسنؓ يوازي دشيخينو دعمل تقليد وکړ، دکوم دليل غوښتنه يې ونه کړه.
پورته ،چي بيان سوه دا دمبارکو اصحابانو دتقليد څو مثالونه وه ،چي په لنډ ډول بيان سوه که نه نو په دغه ډول په کتابونو کي خورا زياتي پيښي راغلي دي.
علامه ابن القيم فرمايي:
والذين حفظت عنهم الفتوى من اصحاب رسول اللهﷺ مائة ونيف وثلاثون نفسا مابين رجل وامراة.([1])
ژباړه : کومي فتواوي ،چي د رسول اللهﷺ داصحابانو ؓ څخه ساتل سوي دي څه باندي يو سل او دېرش فتواوي دي ،چي نارينه او ښځينه دواړه پکښي داخل دي.
پورته فتواوي ،چي اصحابانو کړي دي په دغه فتواوو کي دواړي طريقې په کار لوېدلي دي يعني داچي ځيني فتواوي داسي دي ،چي دقرآن او حديث څخه دليل ورته ويل سوی دئ او دځينو لپاره بيا دليل

دنورو مثالو لپاره دي لاندي کتابونه مطالعه کړل سي:

[1]: اعلام الموقعين لابن القيم، ج ١ ص : ٩.

كتاب الاثار للامام ابي حنيفة ، مصنف عبدالرزاق ، مصنف ابن ابي شيبةرحمه الله ، شرح معاني الاثار ، للطحاوي ، المطالب العالية للحافظ ابن حجر.

دپورته کتابونو په څېر نور کتابونه هم سته ،چي دتقليد مثالونه پکښي وي.



# داصحابانو ﷺ په زمانه کي شخصي تقليد

پورته ،چي کوم مثالونه بيان سوه دمطلق تقليد مثالونه وه يعني داچي داصحابانو ﷺ دتقليد مثالونه وه ،چي کله به يې ديوه عالم تقليد کړی و او کله به يې دبل عالم تقليد کړی و، ديوه خاص فرد تقليد يې نه و کړی داصحابانو ﷺ دتقليد داسي ډېر مثالونه هم سته ،چي شخصي تقليديې کړی وي يعني ديوه خاص فرد تقليد يې کړی وي لکه ،چي ځيني مثالونه يې په لاندي ډول دي:

**لومړی نظير:**

أَنَّ أَهْلَ الْمَدِينَةِ سَأَلُوا ابْنَ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا عَنْ امْرَأَةٍ طَافَتْ ثُمَّ حَاضَتْ قَالَ لَهُمْ تَنْفِرُ قَالُوا لَا نَأْخُذُ بِقَوْلِكَ وَنَدَعُ قَوْلَ زَيْدٍ.([1])

ژباړه: دمديني څه خلکو دابن عباس رضي الله عنهما څخه دهغه ښځي په اړه پوښتنه وکړه ،چي تر طواف زيارت وروسته حايضه سي ،چي دغه ښځه به دطواف وداع لپاره پاتيږي او که دطواف وداع پرته تلای سي يعني داچي طواف وداع دې ته معاف دئ که يا؟ ابن عباس رضي الله عنهما ورته وويل: هو ، تلای سي، هغو خلکوورته وويل : موږ ستا په خبره دزيد رضي الله عنه

روايت کي دمديني دخلکو وينا داسي رانقل سوې ده:

لانبالي افتينا او لم تفتنا ،زيد بن ثابت يقول لاتنفر.(1)

1:

ژباړه : که ته موږ ته فتوا راکړې او که یې را نه کړې موږ ستا په فتوا عمل نه کوو ځکه دزید ﷛ فتوا داسي ده ،چې دغه ښځه دطواف پرته نه سي تلای.

پورتنی روایت دمسند ابوداود طیالیسي له طریقه هم روایت سوی دئ په دغه روایت کي دمدینې دخلکو وینا داسي رانقل سوې ده:

لانتابعک یا ابن عباس﵄! وانت تخالف زیدا فقال سلوا صاحبتکم ام سلیم﵂.(2)

ژباړه : اې ابن عباسه! په دغه مسئله کي موږستا پیروي نه کوو ځکه ته دزید څخه په دې مسئله کي مخالفت کوې، ابن عباس﵄ ورته وفرمایل: تاسو مدینې ته تر رسېدو وروسته دام سلیم څخه پوښتنه وکړئ ، زما خبره صحیح ده.

په پورتنی پیښه کي دابن عباس﵄ او دمدینې دخلکو دخبرو څخه دوې خبري په څرګند ډول معلومېږي لومړی داچي دمدینې خلکو دزید بن ثابت﵁ شخصي تقلید کاوه ، دده دوینا پرته یې دبل چا وینا نه منل بلکي داسماعیلي معجم څخه داهم معلومېږي ،چې ابن عباس﵄ دخپلي فتوا دثبوت لپاره دام سلیم او نور اصحابانو ﵃ احادیث هم بیان کړي دي ځکه کله ،چې ابن عباس﵁ مدینې منورې ته راغلی

وجدنا الحدیث ماحدثتنا.(3)

ژباړه : موږ هغه حدیث پیدا کړ، ،چې تا موږ ته بیان کړی و.

---

۱۳۰۰ ، عمدة القاري ، ج : ۴ ، ۷۷۷.

[2]: مسند ابوداود الطیالیسي ، ص : ۲۲۹ ، مرویات ام سلیم﵂

۴ ، ص .

داچي دمدينې دخلکو دزيد رضي الله عنه پرعلم او فتوا باندې اعتماد و، نو کله ،چې يې دابن عباس رضي الله عنه فتوا دزيد رضي الله عنه دفتوا څخه مخالفه وليدل نو ځکه يې دابن عباس رضي الله عنهما فتوا ونه منل، دوی يوازې دزيد رضي الله عنه وينا دځان لپاره دليل وګرځاوه دابن عباس رضي الله عنهما دفتوا دنه منلو لپاره يې بل کوم دليل نه درلودئ.

دوهمه خبره دپورتنۍ پيښې څخه دامعلوميږي ،چې ابن عباس رضي الله عنهما خلک وليدل ،چې شخصي تقليد يې کاوه ده ځنې منعه نه کړل ،چې دغسې تقليد شرک ، يا معصيت دئ دا مه کوئ بلکې دوی ته يې امر وکړ، ،چې تاسو دتحقيق لپاره ام سليم ته ورسئ او بيا بېرته زيد رضي الله عنه ته رجوع وکړئ، کله ،چې دغه خلک مدينې ته ورسېده نو دابن عباس رضي الله عنهما دلاربښوونې سره سم دتحقيق او څېړنې لپاره ام سليم ته ورغلل ، کله ،چې يې تحقيق وکړ، خبره هم هغسې وه لکه ،چې ابن عباس رضي الله عنهما وايه ، نو بېرته دزيد رضي الله عنه ولورې ته راغلل ، زيد رضي الله عنه هم څېړنه وکړه او په پايله کې دخپلې فتوا څخه واوښتی، وروسته بيا خلکو دغه حال ابن عباس رضي الله عنهما ته بيان کړ.

دپورتنيو روايتونو څرنګوالی مسلم ، نسائي ، بيهقي او داسې نورو

(

(

ص : ۴۶۷ تر ۴۶۹

[2]: تحريک ازادي فکر. ص ۱۳٦ ، دمولانا محمد اسماعيل ي

دپورتنۍ نيوکي بنياد پر غلط فهمۍ باندي ولاړ دئ ځکه دغير مقلدينو لهآنده دتقليد څخه وروسته داحاديثو تقليد ګواکي حرام دئ حال داچي داسي نه ده ځکه تقليد فقط دې ته وايي ،چي يو څوک مستقيمًا دقران او احاديثو څخه دمسئلو استنباط نه سي کولای ، نه ظاهري تعارض رفع کولای سي او نه دناسخ او منسوخ توپير کولای سي ،همداسي ديوه مجتهد څخه دمسئلې سوال کوي او هغه جواب ورکوي ،دی يې ددليل پرته مني ، بيا عمل په کوي همدا دتقليد مفهوم دئ ، ددې معنا دانه ده ،چي دی نو ددې اجازه نه لري ،چي احاديث زده کړي او يا دي تر تقليد وروسته په احاديثو کي څېړنه وکړي بلکي تر تقليد وروسته هر وخت دمقلد پرمخ داحاديثو دزده کړي او تحقيق دروازه خلاصه ده همدا وجه ده ،چي په سلهاوو مقلدينو دخپل امام شخصي تقليد کړی دئ او ورسره يې دقرآنکريم تفاسير او داحاديثو شروح ليکلي دي، په کوم مسئله کي ،چي په څرګند ډول ورته معلومه سي ،چي نوموړې مسئله دقرآن يا حديث څخه ښکاره مخالفه ده نو دخپل امام دتقليد پرځای په هغه حديث عمل کوي ،چي پوره تحقيق به يې وروسته راسي. همدا وجه ده ،چي کوم مقلد ته دخپل امام وينا

ﷺ ژوندی دئ هغه دتحقيق په پايلو خبر کړل سو ، زيد ﷺ ،چي کله خبر سو نو دخپل پخواني قول څخه يې رجوع وکړه بالاخره ددغه تحقيق په برکت دزيد ﷺ مقلدين دحديث دمخالف څخه خلاص سوه او دخپل امام دمخالفت څخه هم خلاص سوه، البته په

عباس رضي الله عنهما ته يې وويل : مور دزيد رضي الله عنه خبره نه پرېږدو ، مور ستا په خبره عمل نه کوو. ددوی دغه وينا شخصي تقليد بلل کېږي.

**دوهم نظير :**

په بخاري شريف اونوروکتابونو کي يوه پېښه دهزيل بن شر حبيل څخه رانقل سوې ده ،چي ځينو خلکو دابو موسي اشعري رضي الله عنه څخه ديوې مسئلې پوښتنه وکړه ده مبارک جواب ورکړ، دليل يې ورته ووايه او دايې هم ورته وويل ،چي تاسو ددې مسئلې په اړه دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه څخه هم پوښتنه وکړئ ، خلکو دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه څخه پوښتنه وکړه دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه فتوا دابوموسی اشعري رضي الله عنه دفتوا څخه خلاف وه ، خلک بيا راغلل ابو موسي اشعري رضي الله عنه ته يې خبر ورکړ، ،چي دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه فتوا ستا دفتوا څخه خلاف ده ، ده مبارک په جواب کي ورته وويل:

لاتسالوني مادام هذا الحبر فيكم.

ژباړه : تاسو زما څخه پوښتنه مه کوئ څو ،چي دغه ستر عالم يعني عبدالله بن مسعود رضي الله عنه په تاسو کي موجود وي.

مسند احمد بيا دغه الفاظ په لاندي ډول رانقل کړي دي:

لاتسالوني عن شيئ مادام هذا الحبر بين اظهركم.

ژباړه : تاسو زما څخه دهيڅ شي پوښتنه مه کوئ څو ،چي دغه ستر عالم

[redacted] رضي الله عنه [redacted] )

[redacted] رضي الله عنه [redacted]

عبدالله بن مسعود رضي الله عنه ژوندی دئ تاسو هم دده مبارک څخه په ټولو

---

[redacted] ۱ ، ص [redacted] ، احاديث عبدالله بن مسعود رضي الله عنه

مسئلو کي پوښتنه کوئ او هم دده تقلید کوئ ، دغه کار ته شخصي تقلید ویل کېږي.

ځیني خلک پر پورتنۍ خبره باندي داسي نیوکه کوي ،چي ابوموسی اشعري رضي الله عنه دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه په شتون کي دخپل تقلید ځخه خلک منعه کړل، دا په دې معنا دئ ،چي تقلید ښه کار نه دئ.

ابوموسی اشعري رضي الله عنه ،چي کله دخپل تقلید ځخه خلک منعه کړل دا په دې معنا نه دئ ،چي دنورو اصحابانو تقلید دي نه کېږي ،هغو ته دي رجوع نه کېږي بلکي په هغه وخت کي لوی ، لوی اصحابان موجود وه ددوی مبارکانو دتقلید ځخه هیڅا منعه نه سوای کولای.

نیوکه کونکی زیاتوي: دپورتنی خبري حاصل دا کېږي ،چي دافضل په شتون کي دي مفضول ته رجوع نه کړل کېږي؟[1]

جواب دادئ: ،چي دغه پیښه په کوفه کي منځته راغلې ده په دغه زمانه کي تر عبدالله بن مسعود رضي الله عنه لوی عالم په کوفه کي نه و، دغه پیښه دحضرت عثمان رضي الله عنه په خلافت کي منځته راغلې ده.[2]

په دغه زمانه کي حضرت علي رضي الله عنه کوفې ته تشریف نه و راوړی له همدې امله ابن مسعود رضي الله عنه په دغه وخت کي تر ټولو لوی عالم و، ددې سره که دابوموسي اشعري رضي الله عنه دوینا علت همدا سي ،چي دافضل په شتون کي دي مفضول ته رجوع نه کېږي نو بیا هم دده مبارک دخبرو خلاصه داده ،چي ابن مسعود رضي الله عنه [redacted]

---

[redacted]

[redacted] ۹۸ ، فتح الباري ، ج : ۱۲ ، ص [redacted].

ژوندی وي ، دده په شتون کي دده څخه دمسئلو پوښتني کېږي او زما څخه هیڅ پوښتني مه کوئ ځکه په کوفه کي ترهغو ښه عالم دی دئ.
په معجم طبراني کي هم یو روایت راغلی دئ ،چي دابوموسي اشعري رضي الله عنه څخه درضاعت دیوې مسئلې پوښتنه وسوه ده په جواب کي همغه خبره وکړه ،چي پورته ذکر سوه یعني داسي یې وویل:
لاتسالوني عن شيئ ماااقام هذا بين اظهرنا من اصحاب رسول الله صلى الله عليه وآله وسلم .
ژباړه : تاسو زما څخه دهیڅ شي پوښتنه مه کوئ څو ،چي درسول الله صلى الله عليه وآله وسلم داصحابانو رضي الله عنهم څخه یو څوک په موږکي موجود وي.(1)
ابو موسي اشعري رضي الله عنه ،چي په کوم محیط اوچاپیریال کي اوسېدئ هغه پردې دلالت کوي ،چي ده مبارک کومه لارښوونه کړې ده یوازي دشخصي تقلید خبره ده. ددې څخه په څرګند ډول ثابتیږي ،چي داصحابانو رضي الله عنهم په زمانه کي شخصي تقلید منعه نه و.

1: مجمع الزوائد ، ج : ۴ ص : ۲۶۲، باب الرضاع. په کنزالعمال کي دعبدالرزاق په

## دريم نظير:

په ترمذي ، سنن ابوداود او داسي نورو کتابونو کي دمعاذبن جبل ﷺ څخه يو روايت رانقل سوی دئ :

عَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمَّا أَرَادَ أَنْ يَبْعَثَ مُعَاذًا إِلَى الْيَمَنِ قَالَ كَيْفَ تَقْضِي إِذَا عَرَضَ لَكَ قَضَاءٌ قَالَ أَقْضِي بِكِتَابِ اللَّهِ قَالَ فَإِنْ لَمْ تَجِدْ فِي كِتَابِ اللَّهِ قَالَ فَبِسُنَّةِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ فَإِنْ لَمْ تَجِدْ فِي سُنَّةِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَا فِي كِتَابِ اللَّهِ قَالَ أَجْتَهِدُ رَأْيِي وَلَا آلُو فَضَرَبَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَدْرَهُ وَقَالَ الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي وَفَّقَ رَسُولَ رَسُولِ اللَّهِ لِمَا يُرْضِي رَسُولَ اللَّهِ.([1])

ژباړه : معاذبن جبل ﷺ وايي ،چي رسول الله ﷺ زه يمن ته لېږلم نو ما ته يې وويل: که تاته يوه مسئله راسي نو ته به څنګه فيصله کوې؟ ما ورته وويل: ،چي دالله ﷻ دکتاب په رڼا کي به يې کوم ، رسول الله ﷺ راته وويل: که دغه مسئله په قرآن کي نه وه بيا به يې څنګه فيصله کوې؟ ما ورته وويل: دنبوي احاديثو په رڼاکي يې فيصله کوم، رسول الله ﷺ راته وفرمايل: که دغه مسئله په احاديثو کي نه وه بيا به يې څنګه فيصله کوې؟ ما ورته وويل : بيابه يې په خپله رايه ، فکر او اجتهاد سره فيصله کوم اوکوشش به کوم ،چي حقه فيصله

ﷺ

ﷻ

---

۹

، ص : ۴۸۹، ط : المکتبة الشاملة ، الاصدارالثاني.

دالله جل جلاله د رسول ﷺ قاصد ته يې دداسې تګ لارې توفيق ورکړ، ،چې دالله جل جلاله رسول ﷺ په راضې کېږي.
پورتنی روايت او  پېښه دتقليد او اجتهاد په مسئله کې داسې ډېره ده ،چې څومره غور او فکر پر کېږي په هغه کچه مشکلات له منځه په ځي . په دې روايت کې زموږ اصلِ موخه يوه لوري ته ده هغه داچې رسول اللهﷺ دخپلو فقيه عالمانو اصحابو څخه يو تن فقيه عالم معاذ رضي الله عنه ديمن خلکو ته دقاضي اومعلم په توګه ولېږی او پرهغوی باندې يې دده  اتباع او پيروي لازمه وګرځول. رسول اللهﷺ نه يوازې ،چې معاذ رضي الله عنه ته يې په  قرآن اودحديث دمسائلوحل وفرمايه بلکې ددې اجازه يې هم ورکړه ،چې په خپله رايه او  فکر سره اجتهاد وکړي او بيا يې مسائلې په رڼا کې حل کړي. داچې رسول اللهﷺ ديمن پر  خلکو لازمه کړه ،چې دمعاذ رضي الله عنه اتباع وکړي په دې کې خو نو بل شی نه سي جوړېدای پرته له دې ،چې رسول اللهﷺ دوی ته دشخصي تقليد امر وکړ بلکې ورباندې لازم يې کړ.([1])

---

[1]: دشخصي تقليد لپاره ،چې ما کوم حديث ددليل په توګه وړاند کړ، پردغه استدلال باندې  يو چا اعتراض کړی دئ،چې ما او زما په څېر نورو مقلدينو علماؤ

،چې علامه جوزقاني رضي الله عنه پر نوموړي حديث باندې کړي دي.
ددغه اعتراض په اړه بايد وويل سي ،چې کوم کس ،چې دغه اعتراضات کړي دي

معاذ رضی الله عنه ،چي کله يمن ته تلی نو ديوه زور ځواکي واکمن په توګه نه بلکي ديومعلم او مفتي په توګه تللی دئ ، څوک ،چي دا فکر کوي ددغه حديث تعلق دقضا او واکمنۍ سره دئ دافتا سره تعلق نه لري دا فکر بېخي درست نه دئ ځکه دبخاري شريف په يوه روايت کي راځي:

6237 – عَنْ الْأَسْوَدِ بْنِ يَزِيدَ قَالَ أَتَانَا مُعَاذُ بْنُ جَبَلٍ بِالْيَمَنِ مُعَلِّمًا وَأَمِيرًا فَسَأَلْنَاهُ عَنْ رَجُلٍ تُوُفِّيَ وَتَرَكَ ابْنَتَهُ وَأُخْتَهُ فَأَعْطَى الِابْنَةَ النِّصْفَ وَالْأُخْتَ النِّصْفَ.([1])

ژباړه : اسود بن يزيد رحمة الله عليه فرمايي: موږ ته معاذ رضی الله عنه دامير او معلم په توګه راغلی نو موږ ديوه کس په اړه پوښتنه ځني وکړه ،چي وفات سوی وي او ترشايې يوه خور او يوه لور پاته وي ،چي ميراث يې څنګه وېشل کېږي؟ معاذ رضی الله عنه په جواب کي راته وويل: نيم مال يې دلور دئ او نيم مال يې دخور دئ.

يې ولي کوم ترديد نه دئ راوړی ، دوهم دا،چي دجوزقاني دنيوکو لپاره جوابونه سوي دي که ده يوازي دابن القيم رحمة الله عليه تحقيق کتلی وای لابه يې شبهات رفعه سوي وای، ابن القيم دجوزقاني داعتراضاتو جوابونه کړي دي او ويلي يې دي د معاذ رضی الله عنه کوم حديث ،چي اصحابانو رانقل کړی دئ په هغو کي څوک متهم ، کذاب او مجروح نسته. همدا ډول ابن القيم دغه حديث دخطيب بغدادي په حواله ديوې بلي طريقې څخه هم رانقل کړی دئ او ويلي يې دي: عن عبادة بن نسي عن عبدالرحمن بن

[1] ص : ۱۷۵ ، تر

رحمة الله عليه

، ص : ۹۹۷، ح

پورتني روايت ته که وکتل سي نو معاذ ﷺ ديوه مفتي په توګه خلکو ته جواب ورکړی دئ او کوم دليل يې هم نه دی ورته بيان کړی او نه هغو ددليل غوښتنه کړې ده او بيادمعاذ ﷺ دغه فيصله هم قبوله سوې ده. معاذ ﷺ که څه هم په ښکاره دليل نه دئ بيان کړی خو دمعاذ ﷺ فيصلې دقرآن او حديث سره مطابقي وې ځکه تاسو دمعاذ ﷺ يوې بلي فتوا ته وګورئ ،چي هلته ده مبارک درسول اللهﷺ حديث رانقل کړی دئ دده مبارک دغه فتوا په لاندي ډول ده:

عَنْ أَبِي الْأَسْوَدِ الدِّيْلِيِّ قَالَ كَانَ مُعَاذٌ بِالْيَمَنِ فَارْتَفَعُوا إِلَيْهِ فِي يَهُودِيٍّ مَاتَ وَتَرْكَ أَخًا مُسْلِمًا فَقَالَ مُعَاذٌ إِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ إِنَّ الْإِسْلَامَ يَزِيدُ وَلَا يَنْقُصُ فَوَرَّثَهُ.([1])

ژباړه:ابي الاسود ديلمي ويلي دي ،چي معاذ ﷺ په يمن کي يوه مسئله ديهودي په اړه بيان کړه ،چي هغه مړ سوی و او ترشايې ورور مسلمان پاته سوی و په اړه يې داپوښتنه راپورته سوې وه ،چي دغه مسلمان ديهودي په مال کي ميراث وړلای سي که يا؟ معاذ ﷺ وفرمايل: ما درسول اللهﷺ څخه اورېدلي دي ،چي اسلام زيادت کوي کمښت نه کوي نو ځکه زما څېړنه او فکر دادئ ،چي دمسلمانی

[1]: مسنداحمد ، ج ██ ٣٦ ██ ٢١٠٤٥، واخرجه الحاکم رحمة الله عليه وقال صحيح الاسناد لم يخرجاه، وقال الذهبي رحمة الله عليه صحيح، مستدرک حاکم ، ج : ۴ ، ص ██

په وجه باید څوک دمیراث څخه محروم نه سي، بالاخره معاذ ﷛ مسلمان ته دیهودي ورور میراث ورکړ.([1])

په پورتني روایت کي معاذ ﷛ داسي حدیث په دلیل کي ووایه ،چي دمیراث دموضوع سره هیڅ اړه نه لري ، داچي ده مبارک داسي حدیث وایه دا دده خپل اجتهاد او څېړنه وه خو بیا هم دیمن خلکو هغه قبول کړ.

په مسند احمد او معجم طبراني کي یو بل روایت هم راځي:

**21063** ... أَنَّ مُعَاذًا قَدِمَ عَلَى الْيَمَنِ فَلَقِيَتْهُ امْرَأَةٌ مِنْ خَوْلَانَ ... فَسَلَّمَتْ عَلَى مُعَاذٍ ... فَقَالَتْ مَنْ أَرْسَلَكَ أَيُّهَا الرَّجُلُ قَالَ لَهَا مُعَاذٌ أَرْسَلَنِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَتْ الْمَرْأَةُ أَرْسَلَكَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَنْتَ رَسُولُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَفَلَا تُخْبِرُنِي يَا رَسُولَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ لَهَا مُعَاذٌ سَلِينِي عَمَّا شِئْتِ...([2])

ژباړه : کله ،چي معاذ ﷛ یمن ته راغلی نو دخولان قوم څخه یوه ښځه ورته راغله سلام یې ورته ووایه او بیا یې ځني وپوښتل : اې سړیه ! ته چا رالېږلی یې؟ معاذ ﷛ ورته وویل : زه دالله ﷻ رسول ﷺ رالېږلی یم، ښځي ورته وویل: ایا ته رسول الله ﷺ رالېږلی یې؟ ، دالله ﷻ درسول ﷺ استازی یې؟ ، اې دالله ﷻ درسول استازې؟ ته موږ ته

[1]: پاته دي نه وي ،چي دا دمعاذ ﷛ خپل تحقیق او فکر و که نه نو دجمهورو اصحبانو ﷡ او فقهاوو له انده مسلمان دکافر څخه میراث نه سي وړلای ځکه رسول الله ﷺ فرمایي: لایرث المسلم من الکافر.

[2]: اورده الهیثمي في مجمع الزوائد ، ج : ۴ ، ص : ۳۰۷، ۳۰۸، باب حق الزوج علي المرء وقال رواه احمد والطبراني من روایة عبدالحمید بن بهرام عن شهر وفیها ضعف وقد وثقا.

ددين احکام نه رابنيې معاذ ؓ ورته وويل: زما څخه دهر هغه شي په اړه پوښتنه وکړه ،چې ستا خوښه وي؟.

دپورتني حديث څخه معلوميږي ،چې معاذ ؓ يوازي دوالي او واکمن په توګه يمن ته نه و لېږل سوی بلکي معاذ ؓ درسول الله ﷺ استازی او نماينده و، دده دنده داوه ،چې الهي احکام خلکو ته ورزده کړي ، همدا لامل و ،چې هغې ښځي دده څخه پوښتنه وکړه او ده ورته وويل ،چې ته زما څخه دهر هغه شي په اړه پوښتنه کوه ،چې ستا زړه غواړي.

دپورتني حديث په اخره کي هغې ښځي دمعاذ ؓ څخه پوښتلي دي ،چې پر ښځه باندي دخپل مېړه څه حقوق دي؟ معاذ ؓ داسلام داصولو مطابق جواب ورکړی دئ او دجواب په ويلو سره يې دې ته کوم آيت يا حديث ددليل په توګه نه دی ويلی ، ددې څخه دامعلوميږي ،چې معاذ ؓ يوازي دانتظامي چارو دسرته رسولو لپاره نه و لېږل سوی بلکي معاذ ؓ درسول الله ﷺ دنماينده په توګه ديمن خلکو ته ورغلی و او دايې دنده وه ،چې خلکو ته دشريعت احکام ورزده کړي او خلک دده تقليد وکړي.

ﷺ ؓ په اړه داسي فرمايلي دي:

اعلمهم بالحلال والحرام.

ژباړه :په اصحابانو ﷺ کي ترټولو زيات په حلالو اوحرامو ښه عالم معاذ ﷺ دئ.[1]

په بل ځای کي رسول الله ﷺ دمعاذ ﷺ په اړه داسي فرمايلي دي:

انه يحشر يوم القيامة بين يدی العلماء نبذه.[2]

ژباړه : الله جل جلاله به معاذ ﷺ دقيامت په ورځ داسي را وپاڅوي ،چي دعلماوو قيادت به کوي او ددوی څخه به دومره مخکي وي څومره ،چي غشي ځي ،ځکه معاذ ﷺ نه يوازي ،چي ديمن خلکو دده تقليد کاوه بلکي نورو اصحبانو ﷺ هم دده تقليد کاوه.

21052 - ... عَنْ أَبِي مُسْلِمٍ الْخَوْلَانِيِّ قَالَ أَتَيْتُ مَسْجِدَ أَهْلِ دِمَشْقَ فَإِذَا حَلْقَةٌ فِيهَا كُهُولٌ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (وفي رواية كثير بن هشام فاذا هي ثلاثين كهلا من اصحاب رسول الله ﷺ)وَإِذَا شَابٌّ فِيهِمْ أَكْحَلُ الْعَيْنِ بَرَّاقُ الثَّنَايَا كُلَّمَا اخْتَلَفُوا فِي شَيْءٍ رَدُّوهُ إِلَى الْفَتَى فَتًى شَابٌّ قَالَ قُلْتُ لِجَلِيسٍ لِي مَنْ هَذَا قَالَ هَذَا مُعَاذُ بْنُ جَبَلٍ...[3]

ژباړه : ابومسلم خولاني وايي:زه ددمشق دخلکو مسجد ته ورغلم که مي کتل په دې مسجد کي يوه ډله سپين ږيري اصحابان ﷺ ناست وه ، په يوه روايت کي راغلي دي ،چي دېرش تنه سپين ږيري اصحابان ﷺ ناست وه ، ناڅاپه مي يو ځوان وليدئ ،چي سترګي يې توري وي

[illegible] ﷺ [illegible]

---

[illegible] رحمة الله عليه ، ج : [illegible]

[illegible] ﷺ [illegible]

رمية سهم. الفتح الرباني ، ج : ١ ص : ٣٥٢.

[3] مسند احمد ، مرويات معاذ بن جبل ، ح :٢١٠٥٢، ج [illegible] ، ص [illegible]

کي اختلاف سوه نو دغه ځوان ته به يې رجوع کول ، دغه ځوان به فيصله ورکول،ما دځنګ ديوه ملګري څخه پوښتنه وکړه ،چي داڅوک دئ؟ هغه ملګري راته وويل: دا معاذ بن جبل رضي الله عنه دئ.

تاسو وګوري معاذ بن جبل رضي الله عنه داسي يو څوک و ،چي ويوې ډلي اصحابانو رضي الله عنهم دده تقليد کاوه او ده به يې اختلافي مسئلې ور فيصله کولې.

ديوه بل روايت الفاظ داسي راغلي دي:

اذا اختلفوا في شيئ اسندوه اليه وصدروا عن رايه.([1])

ژباړه : کله ،چي به ددوی ترمنځ کومه اختلافي مسئله راغلل نو دغه مسئله به يې معاذ رضي الله عنه ته سپارل او دده رايه به يې قبلول.

لنډه داچي معاذ رضي الله عنه دهغه ښو علماوو او فقهاوو له ډلي څخه دئ ،چي رسول الله صلی الله علیه وسلم خپله ورته (اعلم بالحلال والحرام) ورته ويلي دي او خپله اصحابانو رضي الله عنهم هم دده تقليد کړی دئ. کله ،چي رسول الله صلی الله علیه وسلم معاذ رضي الله عنه يمن ته ولېږی نو دقضاء څخه نيولې بيا ترپوره تعليم ، افتاء او نور مسؤليتونه يې ده ته حواله کړل ، رسول الله صلی الله علیه وسلم ديمن پر خلکو لازم وګڼل ،چي دده اطاعت وکړي او ديمن خلکو هم داسي وکړل دده تقليد يې وکړ، همدا دشخصي تقليد حقيقت دئ.

**څلورم نظير** :

په سنن ابوداود کي رو[illegible]

عَنْ عَمْرِو بْنِ مَيْمُونٍ الْأَوْدِيِّ قَالَ قَدِمَ [illegible] الْيَمَنَ رَسُولُ

رَسُولِ اللَّهِ [illegible] قَالَ [illegible] الْفَجْرِ رَجُلٌ أَجَشُّ

---

[1] [illegible] ، ص [illegible]

الصَّوْتِ قَالَ فَأُلْقِيَتْ عَلَيْهِ مَحَبَّتِي فَمَا فَارَقْتُهُ حَتَّى دَفَنْتُهُ بِالشَّامِ مَيِّتًا ثُمَّ نَظَرْتُ إِلَى أَفْقَهِ النَّاسِ بَعْدَهُ فَأَتَيْتُ ابْنَ مَسْعُودٍ فَلَزِمْتُهُ حَتَّى مَاتَ([1])

حضرت عمرو بن ميمون رحمة الله عليه وايي: كله، چي رسول الله صلى الله عليه وسلم معاذ رضي الله عنه يمن ته داستازي په توګه راو لېږئ نو ما دسهار په لمانځه کي دده تکبير واورېدئ، چي اواز يې ډک او دروند و نو زما مينه ورسره پيدا سوه او بيا دده مبارک دمرګ تر مهاله زه ځني جلا نه سوم تر داسي بريده، چي ما په خپل لاس باندي په شام کي دفن کړ، بيا په خلکو کي ښه عالم وليدئ نو زه ابن مسعود رضي الله عنه ته راغلم او دمرګ ترمهاله پوري ځني جلا نه سوم.

په پورتني روايت کي دحضرت ميمون رحمة الله عليه وينا، چي زه دمعاذ رضي الله عنه سره ملګری وم تر هغه وخت پوري، چي دی ژوندی و او بيا، چي کله دی وفات سو نو ما ابن مسعود رضي الله عنه ته ځکه رجوع وکړه، چي ابن مسعود رضي الله عنه تر معاذ رضي الله عنه وروسته ښه عالم و، دده مبارک دغه وينا پردې باندي دلالت کوي، چي لومړی بايد هغه چا ته رجوع وکړل سي، چي هغه ترټولو ښه عالم وي تر هغه وروسته بيا هغه چاته رجوع وکړل سي، چي تر پاته خلکو ښه عالم وي مطلب داچي ميمون رحمة الله عليه دمعاذ رضي الله عنه په ژوند کي ابن مسعود رضي الله عنه

رحمة الله عليه رضي الله عنه

دمعاذ رضي الله عنه رضي الله عنه

[1]: ابوداود، باب اذا اخر الامام الصلوة عن الوقت، ج: ١، ص ، ومسند احمد، ج ١٣١

# څو بېلابېل مثالونه

۵ : داصحابانو رضي الله عنهم په څېر ډېرو تابعينو هم تقليد کړی دئ ځينو تابعينو يو صحابي دځان لپاره مقتدا ګرځولی دئ او ځينو بيا بل صحابي دځان لپاره مقتدا ګرځولی دئ او دوی مبارکانو يې شخصي تقليد کړی دئ لکه ،چي امام شعبي رحمة الله عليه فرمايي:

من سره ان ياخذ بالوثيقة في القضاء فلياخذ بقول عمرو رضي الله عنه ([1])

ژباړه :که څوک په دې خوشالېږي ،چي په قضا کي وثيقه واخلي نو دعمر رضي الله عنه قول دي ټينګ ونيسي.

٦ : حضرت مجاهد رحمة الله عليه فرمايي:

اذا اختلف الناس في شيئ فانظروا ما صنع عمر فخذو به.(2)

ژباړه : کله ،چي دخلکو په کومه مسئله کي اختلاف پيدا سي نو و دي ګوري ،چي عمر رضي الله عنه په دغه اړه څه کړي دي همدغسي دي وکړي.

۷ : دابراهيم نخعي په اړه اعمش رحمة الله عليه ليکي:

انه كان لايعدل بقول عمر رضي الله عنه وعبدالله رضي الله عنه اذا اجتمعا فاذااختلفاكان قول عبدالله رضي الله عنه اعجب اليه.(3)

ژباړه : ابراهيم نخعي رحمة الله عليه دحضرت عمر رضي الله عنه او عبدالله رضي الله عنه په قول

رضي الله عنه رحمة الله عليه

۱۴

**۸ : حضرت ابو تميمه رحمة الله عليه فرمايي :**

**قدمنا الشام فاذا الناس مجتمعون يطيفون برجل ، قال قلت من هذا ، قالوا هذا افقه من اصحاب النبي صلى الله عليه وسلم هذاعمر والبكائي رضي الله عنهما.([1])**

ژباړه : موږ شام ته راغلو كه مو كتل خلك پر يو كس باندي شاوخوا راټول دي او پر راګرځي ، دی وايي ،چي ماديوه چا څخه پوښتنه وكړه ،چي دا كس څوک دئ؟ دوی راته وويل: دا په ژونديو اصحابانو كي تر ټولو ښه فقيه دئ.

**۹ : امام محمدبن جرير طبري رحمة الله عليه فرمايي :**

**لم يكن احد له اصحاب معروفون حرروا فتياه ومذاهبه في الفقه غير ابن مسعود رضي الله عنه وكان يترک مذهبه وقوله لقول عمر رضي الله عنه وكان لايكاد يخالفه في شيئ من مذاهبه ويرجع من قوله الي قوله وقال الشعبي كان عبدالله لايقنت ، وقال : ولوقنت عمر لقنت عبدالله.(2)**

ژباړه : دابن مسعود رضي الله عنه پرته بل څوک داسي نسته ،چي دومره ډېر شاګردان دي يې وي، فتاواوي او فقهي مذاهب دي يې مدون سوي وي ،سره ددې ،چي ابن مسعود رضي الله عنه دحضرت عمر رضي الله عنه دومره تقليد كاوه ،چي خپله وينا يې دعمر رضي الله عنه دوينا په مقابل كي پرېښوول په هيڅ شي كي يې ورسره مخالفت نه كاوه، امام شعبي رحمة الله عليه فرمايي: ابن مسعود رضي الله عنه ███ رضي الله عنه لوستلی وای نو ده هم خامخا لوستی.

پورته ،چي بيان سوه داټول دشخصي تقليد مثالونه وه البته يوه خبره ديادولو وړ ده هغه داچي ███



درجو په اعتبار سره کله داسي ،چي يو مقلد سره ددې ،چي دخپل امام تقليد کوي مګر بيا هم په ځينو مسائلو کي ورسره اختلاف کوي ، دې ته هم شخصي تقليد ويل کېږي لکه ځيني حنفي مشايخ ،چي دامام ابوحنيفةرحمة الله عليه په خلاف يې ځيني ځايونه فتوا ورکړې ده ،خو بياهم دوی ته دامام ابوحنيفةرحمة الله عليه مقلدين ويل کېږي، ددې خبري پوره تفصيل به انشاء الله وروسته راسي. دپورتنيو خبرو په نظر کي نيولوسره ويلای سو ،چي ابن القيمرحمة الله عليه دتقليد په وړاندي ،چي داصحابانو رضي الله عنهم او تابعينو داختلافاتو کوم مثالونه ويلي په هغو سره زموږ استدلال نه اغېزمن کېږي.(1)

حاصل داچي دپورتنيو روايتونو څخه داخبره په ثبوت رسيږي ،چي داصحابانو رضي الله عنهم په زمانه کي په دواړه تقليدونو يعني په شخصي او مطلق دواړو سره عمل سوی دئ ، داچي دوی مبارکانو دواړه ډوله تقليد کړی دئ نو حقيقت هم دادئ ،چي هغه کس ،چي داصل په اعتبار سره دقرآن او حديث څخه مستقيما دمسئلو استنباط نه سي کولای هغو ته دا جايزه او صحيح ده ،چي دواړه ډوله تقليد وکړي ځکه حضرت شاه والي الله محدث دهلوي رحمة الله عليه ليکي:

صلى الله عليه وسلم ولايعتقد حلالا الا ما احله الله ورسوله ولاحراما الا ما حرم الله ورسوله لكن لما يكن له علما بماقاله النبيصلى الله عليه وسلم

---

رحمة الله عليه

لرونکي او قناعت ورکونکي جوابونه يې دهر جز لپاره په ج ص : ۴ تر ٦ پوري په انهارالسکن کي وګورئ ،چي داعلاء السنن مقدمه ده. همدا ډول وګورئ: الفائده

الجمع بين المختلفات من كلامه ولابطريق الاستنباط من كلامه اتبع عالما راشدا علي انه مصيب فيما يقول ويفتي ظاهرا متبع سنة رسول اللهﷺ فان خالف مايظنه اقلع من ساعته من غير جدال ولا اصرار فهذا كيف ينكره احد مع ان الاستفتاء ولافتاء لم يزل بين المسلمين من عهد النبيﷺ ولافرق بين ان يستفتي هذا دائما او يستفتي هذا حينا وذالک حينا بعد ان يكون مجمعا علي ماذكرناه.(1)

ژباړه : کوم څوک ،چي دتقليد په اړه بد وايي دهغه اطلاق پر هغه چا نه کېږي ،چي دالله جل جلاله اور سول اللهﷺ دويناوو پرته دبل چا قول حجت او دليل نه مني ، عقيده يې داوي ،چي فقط کوم څه ،چي الله جل جلاله او رسول ﷺ حلال کړي دي هغه حلال دي او فقط کوم څه ،چي الله جل جلاله او دهغه رسولﷺ حرام کړي وي هغه حرام دي مګر داچي درسول اللهﷺ احاديث ورته معلوم نه وي ، نه درسول اللهﷺ دمتعارضو احاديثو په تطبيق پوهېږي ، نه درسول اللهﷺ داحاديثو څخه دمسائلو داستنباط په طريقه پوهېږي نو ځکه ديوه داسي عالم تقليد وکړي ،چي دهدايت لاره يې خپله کړې وي او په ښکاره دسنتو متبع وي نوموړی کس دي ددغه عالم اتباع او پيروي ځکه وکړي ،چي دده په آند نوموړی عالم حق ته رسېدلی وي او دده په ګومان نوموړی عالم پر هدايت او دسنت متبع وي خو کله ،چي دده دغه ګومان غلط ثابت سو نو دڅه



اللهﷺ ... ښتنه کول جايز سوه نو بيا په دې کي هيڅ فرق نسته ،چي يو کس ديوه خاص عالم څخه پوښتنه

---

[1]: حجة الله البالغة ، ج : ۱، ص : ۵۶، ط: مكتبة سلفية لاهور، نېټه : ۱۴۲۵هـ ، عقد ... ۱۴۴۴، هـ

کوي ،چي ورته شخصي تلقيد ويل کيږي او داچي کله ديوه عالم ، څخه پوښتنه کوي او کله بيا په بله مسئله کي دبل عالم څخه پوښتنه کوي ،چي ورته مطلق تقليد وويل سي. البته داخبره لازمي ده ،چي په پوښتل سوي عالم کي به پورته ذکر سوي شرطونه موجود وي.

## شخصي تقليد ته اړتيا

اصلاً د شخصي او مطلق دواړو تقليدونو څخه په يوه باندي عمل کول جايز دي ،خو داچي الله جَلَّ جَلَالُهٗ ددې وروستۍ زمانې پر علماوو باندي خپل خاص رحمت کړی دئ ، دوی ته يې داسي ذکاوت ، فکر او پوهه ورکړې ده ،چي دمعاصري زمانې بدلېدونکي حالات درک کولای سي او نظرورباندي ورکولای سي ، دوی ديوه ځواکمن مصلحت پر بنسټ باندي داسي پرېکړه کړې ده ،چي په دواړه ډوله تقليدونو کي دي يوازي په شخصي تقليد عمل وکړل سي يعني داچي کله مقلد ديوه امام خبره عملي کوي او کله دبل امام خبره عملي ددې پرځای دي ديوه امام تقليد دي وسي.

اوس پوښتنه داده ،چي دغه ځواکمن مصلحت نو څه شي دئ؟ دپورتنۍ پوښتني په جواب کي بايد لومړۍ داخبره وسي او په ذهن کي وساتل سي ،چي خواهش پرستي هغه سخته او ناوړه گناه ده ،چي ډېر وخت انسان تر کفره پوري رسوي، همدا لامل دئ ،چي په قرآنکريم کي

رئ.

دخواهش پرستۍ څخه يو ډول داهم ده ،چي يوڅوک بداو ګناه حرام بولي مګر دخواهش پرستۍ په وجه په دغه ګناه اوحرام کارلاس پوري کوي دا ډول خواهش پرستي که څه هم لويه ګناه ده مګر يوه ورځ نه يوه ورځ انسان پرخپله ګناه باندي پښېمانه کېږي او توبه ايستونکی جوړيږي.

دخواهشت پرستۍ دوهم ډول دادئ ،چي انسان دخواهشت پرستۍ په غلامۍ کي تر داسي بريده ورسېږي ،چي حلال حرام وبولي او حرام حلال وبولي او ددين څخه دلوبو ګين جوړ کړي ، ښکاره خبره ده ،چي دخواهشت پرستۍ دغه دوهم صورت زيات دروند او سخت تاوان لرونکی دئ. دفقه شريفي علماوو ثابته کړې ده ،چي دخلکو ديانت ورځ تربلي دټيټ والي پر لوري ځي که دمطلق تقليداجازه ورکړل سي نوډېر خلک به په قصده او ډېر خلک به دناپوهۍ په وجه په خواهشت پرستۍ اخته سي. دمثال په ډول دامام ابوحنيفةرحمة الله عليه پر مذهب دبدن څخه په وينه وتلو باندي اودس ماتيږي او دامام شافعيرحمة الله عليه پر مذهب دبدن څخه په وينه وتلو باندي اودس نه ماتيږي ، که ،چيري دمطلق تقليد اجازه ورکړل سي نو يوکس به دګرمۍ په موسم کي دامام ابوحنيفةرحمة الله عليه په مذهب وي په وينه سره به اودس ماتوي او نوی اودس به تازه کوي ، ديخنۍ په موسم کي به دامام شافعيرحمة الله عليه په

رحمة الله عليه

دادئ ،چي که ديوچا پر ښځه باندي لاس ولګېدئ اودس يې مات دئ او دامام ابوحنيفةرحمة الله عليه پر مذهب ددغه کس اودس نه دئ مات. اوس

رحمة الله عليه رحمة الله عليه

بې اوسه پرلمانځه باندي ودرېږي ،مطلب داچي دكوم امام قول ،چي ده ته اسانه وي هغه به عملي كوي او دكوم امام قول ،چي ده ته ګران وي دهغه څخه به مخ اړوي همدا ډول به دده نفس دهغه امام ،چي دده دطبيعت سره يې قول سم دئ دهغه دقول پر صحت به شاهدي وركوي، ددغه كار په كولو سره به نوموړى كس په غير شعوري ډول په خواهشت پرستۍ اخته سوى وي او شرعي احكام به دنفساني خواهشات تابع محض ګرځېدلي وي ، كه خداى مه كړه داسي وسي نو دداسي كړني په حرمت كي دمسلمان امت څخه هيچا اختلاف نه دئ كړى ، علامه ابن تيميه رحمة الله عليه دنوموړي كار خرابي په ګوته كوي او فرمايي:

وقدنص الامام احمد وغيره ان ليس لاحد ان يعتقد الشيئ واجبا او حراما ثم يعتقده غير واجب او حراما ،ثم يعتقده غيره واجب اومحرم بمجرد هواه ،مثل ان يكون طلبالشفعه الجوار يعتقدها انها حق له ثم اذا طلبت منه شفعة الجوار اعتقدها انها ليس ثابتة او مثل من يعتقد اذاكان اخا مع جد ان الاخوه تقاسم الجد فاذا صار جدا مع اخ اعتقد ان الجد لالقاسم الاخوة... فمثل هذا ممن يكون في اعتقاده حل الشيئ وحرمته ووجوبه وسقوطه بسبب هواه هو مذموم مجروح خارج عن العدالة وقد نص احمد وغيره علي ان هذا لايجوز.([1])

ژباړه : امام احمد او نورو داخبره څرګنده كړې ده ،چي چا ته ددې خبري اجازه نسته ،چي شى دي واجب يا حرام وبولي او بيا دي دنفسي هوا په غوښتنه هغه شى نه واجب او نه حرام وبولي، دمثال په ډول كله ،چي نوموړى كس دچا څخه دشفع غوښتنه كوي نو دى دامام ابوحنيفة رحمة الله عليه مذهب اختياروي ،چي شفع دده حق دئ او كه دده څخه چا دشفع

[1]: الفتاوى الكبري لابن تيميه رحمة الله عليه ، ج: ٢ ، ص : ٢٣٧ ، ط : دارالكتب الحديث مصر ،التزام مذهب والمسائل التي يذكر فيها وجهان.

غوښتنه وکړه نو دی دامام شافعي رحمة الله عليه مذهب اختياروي ،چي دشفع حق ثابت نه دئ. او يادا چي که ديو سړي ورور مړ سي او نيکه يې هم ژوندی وي نو دده دا عقيده وي يعني دهغه مذهب پيروان وي ،چي ورور د نيکه سره ميراث وړلای سي او که دی خپله نيکه وي لمسی يې مړسي نو دده دا عقيده وي يعني دهغه مذهب پيروان وي ،چي دنيکه سره ورور ميراث نه سي وړلای داسي کړنه يعني داچي دنفسي خواهشاتو په سبب ديو شي حلالوالی يا حرام والی ثابتوي او يا ديو شي دوجوب او جواز حکم کوي داسي کړنه بده ، غلطه او دعدالت څخه دباندي کړنه ده، امام احمد او داسي نورو علماوو په همدغه خبره سره تصريح کړې ده او داکار يې ناجايز ګڼلی دئ.

په بل ځای کي ليکي:

يکونون في وقت يقلدون من يفسده وفي وقت يقلدون من يصححه بحسب الغرض والهوى ومثل هذا لايجوز باتفاق الائمة.

ژباړه : داسي خلک يو وخت دداسي امام تقليد کوي ،چي نکاح فاسدوي او بل وخت بيا دداسي امام تقليدکوي ،چي نکاح صحيح کوي دخپل نفسي هوا په وجه باندي داسي کړنه دټولو امامانو په آند نه

ونظيرهذا ان يعتقد الرجل ثبوت شفعه الجوار اذا كان طالبا لها وعدم ثبوتها اذا كان مشتريا فان هذا لايجوز باالاجماع وكذا من صحة ولاية الفاسق في حاله نكاحه وبني علي فساد ولايته حال طلاقه لم يجز ذالک باجماع المسلمين ،ولوقال المستفتي المعين انا لم اكن

اعرف ذالک وانامن اليوم التزم ذالک لم يکن ذالک لان ذالک يفتح باب التلاعب بالدين وفتح الذريعة الي ان يکون التحليل والتحريم بحسب الاهواء.(1)

ژباړه : ددې مثال داسي دئ لکه يوسړی ،چي دشفع دعوه کوي نو دشفع پر ثبوت باندي عقيده لري خو کله ،چي بيا رانيونکی وي نو بيا دشفع دنه ثبوت عقيده لري، داکار دامت په اجماع سره حرام اوناروا دئ، همدا ډول کوم سړی ،چي دنکاح دقيام پر مهال دفاسق ولايت جايز بولي خو کله ،چي مغلظ طلاق ځني واقع سي نوبيا دفاسق ولايت بې ځايه بولي او نکاح فاسده بولي ،داکار دامت په اجماع سره حرام اوناروادئ او که کوم مستفتي ووايي ،چي دغه نوي لاره ماته پخوا معلومه نه وه اوس معلومات راته وسو زه اوس عقيده ورته لرم داخبره هم دمنلوړ نه ده ځکه په داسي کړنه سره ددې لاره خلاصيږي ،چي په دين خلک بازۍ وکړي او ددې ذريعه جوړه سي ،چي حلال او حرام دهوا پر بنسټ باندي صورت ونيسي.

حاصل داچي دخپل نفساني خواهشاتو پر بنسټ يو شی ته کله حلال او کله حرام ويل او يا دخپل ځاني ګټې په وجه باندي کله مذهب منل او کله نه منل لوی جرم او سخته ګناه ده آن تردې ،چي هيڅوک ورته روا او جايز کار نه وايي.

رحمة الله عليه

ويناوو باندي بسنه وکړه ځکه کوم کسان ،چي تقليد ته جايز کار نه وايي هغه هم دابن تيميه رحمة الله عليه علميت او لوړ منزلت پيژني، که څه هم

[1]: ايضا فتاوای ابن تيميمه ، ج : ٢ ٢٨٥، ٢٨٦، فيمن تزوج امراة بولاية فاسق.

ابن تيميه رحمة الله عليه خپله هم شخصي تقليد نه مني مګر دا وايي ،چي ځوک دخپلو خواهشاتو په وجه کله يوه مذهب ته ځي او کله بل مذهب دا کار دټول امت په اجماع سره جايز نه دئ.

ځرنګه ،چي داصحابانو رضي الله عنهم او تابعينو په زمانه کي دالله جل جلاله وېره زياته وه په هغه وخت کي مطلق تقليد جايز و ، ځکه په هغه وخت کي دا وېره نه وه ،چي خلک دي دخپلو ځاني خواهشاتو په وجه کله يو شی حلال وبولي او کله دي يې حرام وبولي يعني داچي کله دي ديوه مجتهد خبره ومني او کله دي دبل مجتهد خبره ومني ، په هغه وخت کي پر مطلق تقليد باندي هيڅ بنديز نه و کوم چا ،چي به مطلق تقليد کاوه هيچا بد نه باندي ويل ، کله ،چي ددې وروستۍ زمانې فقهاوو وليدل ،چي دخلکو ديانت پر کمېدو دئ ، ورځ تربلي خلک دخپلو خواهشاتو تابع کېږي ، پر خلکو باندي خواهشات غالبه کېږي نو ځکه دغه فقهاوو ديوه انتظامي مصلحت په وجه باندي دا پرېکړه وکړه ،چي شخصي تقليد دي لازم سي او مطلق تقليد دي پاته کړل سي يعني مطلق تقليد دي جايز نه سي که څه هم دغه پرېکړه يوه شرعي فتوا نه ده بلکي ديوه انتظامي مصلحت پربنسټ دغه پرېکړه سوې ده.

دشخصي تقليد دوجوب وجهه دصحيح مسلم شارح شيخ الاسلام علامه نووي رحمة الله عليه داسي ليکلې ده:

ووجهه انه لوجاز اتباع اى مذهب شاء لافضي الي ان يلتقط رخص المذاهب متبعا هواه ويتخير بين التحليل والتحري

بخلاف العصر الاول فانه لم تكن المذاهب الوافية باحكام الحوادث مهذبة وعرفت فعلى هذا يلزمه ان يتجهد في اختيار مذهب يقلده علي التعين .([1])

ژباړه :دشخصي تقليد دوجوب وجه داده ،چي كه دديې اجازه وركړل سي ،چي هر سړي دي دخپلي خوښي جواب سوې مسئله رااخلي په هر مذهب كي ،چي دده دطبيعت سره سم حل سوې وي په هغه دي عمل كوي نو خلك به دخپلو نفساني هواوو تابع وګرځي ، حلالوالی ، حراموالی ، جواز او وجوب اختيار به دخلكو په لاس كي سي كوم شی ،چي په هرمذهب كي اسانه و هغه به عملي كوي اوكوم شي ، چي ګران وي هغه به نه كوي ، په لومړيو وختو كي مطلق تقليد ځكه جايز و ،چي په هغه وختو كي زيات نوي مسائلي نه وي حل سوي نو بناءً په اوس وخت كي لازمي ده ،چي هر څوک شخصي تقليد وكړي.

علامه نووي رحمة الله عليه په خپله ليكنه كي ويلي دي ،چي كه دمطلق تقليد ښكاره اجازه خلكو ته وركړل سي نو خلک به دخپل طبيعت مطابق حلال ، حلال بولي اوحرام به دخپل طبيعت مطابق حرام بولي ، دشرعي احكامو پابندي به بېخي له منځه ولاړه سي ، دلاښه روښانتيا لپاره ويلای سو ،چي داصحابانو رضي الله عنهم دزمانې څخه تراوسه پوري په زرهاوو

1 ... رحمة الله عليه ، ج : ١ ص : ١ ...

ورکړل سي نو یقینا به خلک دمجتهدینو دمذهبونو څخه دخپلي خوښي مسئلې راټولي کړي او بیابه عمل په کوي نو یقینا به هغه خبره سي کومه ،چي امام نووي رحمه الله ورته اشاره کړې ده ، دمثال په ډول دامام شافعي رحمه الله پرمذهب باندي شطرنج کول جایز دي ، همدا ډول عبدالله بن جعفر ته ددې خبري نسبت کېږي ،چي دده له آنده موسیقي جایزه وه.(1)

دحضرت قاسم رحمه الله څخه روایت دئ ،چي دده په آند صوري تصویره جایز دي.(2)

امام اعمش رحمه الله ته ددې خبري نسبت کېږي ،چي دده پر مذهب باندي په روژه کي خوله بندول دسپېدو څخه نه بلکي دلمر ختو څخه پیلېږي.(3)

حضرت عطاء بن ابي رباح رحمه الله فرمايي: که داختر ورځ دجمعې دورځي سره برابر سي نو په دغه ورځ باندي دماپښین لمونځ نسته او نه دجمعې لمونځ سته بلکي تر مازدیگر پوري هیڅ لمونځ نسته.(4)

دداود ظاهري رحمه الله او ابن حزم رحمه الله څخه داسي رانقل سوي دي ،چي څوک که دکومي ښځي سره نکاح کول غواړي نو دهغې ښځي کتل داسي جایز دي ،چي لوڅه وي.(1)

---

رحمه الله ، ج [redacted] ، ص [redacted]

[redacted] ۲ ص : ۱۹۹، باب صورة الحیوان.

3. روح المعاني للالوسي ، ج : ۲ ص : ٦٧، سورة بقرة الایة ۱۸۷ ، دعلامه الوسي رحمه الله [redacted]

[redacted] رحمه الله ، ج : [redacted] ۳۳۴.

ابن سحنون رحمة الله عليه او څه نورو علماوو ته ددې خبري نسبت کېږي ،چي ددوی له آنده دښځي سره په دبره کي وطي کول جایزدي.[2]

حاصل داچي که هر چا ته اجازه ورکړل سي ،چي مطلق تقلید وکړي نو ډېر خلک به داسي وي ،چي دخپل نفس دپیروۍ په وجه به هر هغه مسئله ،چي یې خوښه سي په هغه به عمل کوي بلکي دټولو مذهبونو څخه به اسانه ، اسانه مسئلې راټولي سي یو نوی دین او مذهب به ځني جوړ سي او ددغه مذهب او دین بنسټ ایښودونکي به نفس اوشیطان وي، ددین څخه به دلوبو یو شی جوړ سي داسي کړنه دهیڅ مذهب په رڼا کي جایزه نه ده لکه ،چي حضرت معمر رحمة الله عليه فرمایي:

لو ان رجلا اخذ بقول اهل المدينة في استماع الغناء واتيان النساء في ادبارهن ، وبقول اهل مكة في المتعة والصرف وبقول اهل الكوفة في المسكر شر عباد الله.[3]

ژباړه : که یو څوک دموسیقۍ داورېدلو او دښځو سره دلواطت اړونده دمدینې دخلکو څه خبري ومني، دمتعي اوصرف اړونده دمکې دخلکو څه خبري ومني ، دمنشیاتو اړونده دکوفې دخلکو څه خبري ومني نو دغه کس به دالله جل جلاله دشریرو بندګانو څخه وي.

همدا وجه ده ،چي وروستیو فقهاوو شخصي تقلید لازمي ګرځولی دئ څو خلکو ددې لاره پیدا نه سي ،چي حلال او حرام دخپلو طبیعتونو سره برابر وټاکي.

---

٢ ، ص .

[2]: تلخيص الحبير للحافظ ابن حجر رحمة الله عليه، ج ، ص: ٨٦ .

رحمة الله عليه

علامه عبدالرؤف مناري رحمة الله عليه په دې اړه خورا تفصيلي بحث کړی دئ نوموړی عالم ددغه مسئلې اړونده ابن الهمام رحمة الله عليه قول رانقل کړی دئ اوليکلي يې دي:

والغالب ان مثل هذا التزامات لکف الناس عن تتبع الرخص (1)

ژباړه : غالبه داده ،چي دغه التزامات له دې امله دي ،چي خلک دنفسي غوښتنو پر بنسټ دا سانيو دلټولو څخه منع کړل سي.

علامه ابواسحاق شاطبي رحمة الله عليه په خپل کتاب الموافقات کي په دې اړه تفصيل واره بحث کړی دئ او ويلي يې دي:

دېلابيلو مذاهبو څخه اسانه شيان راجمع کول او بيا عمل په کول سخت ناروا دئ.

نوموړي عالم پر دغه موضوع باندي خورا زيات دلايل ويلي دي په لړ کي يې دمالکي مذهب ديوه مشهور عالم مازري رحمة الله عليه پيښه رانقل کړې ده ،چي دده مبارک څخه پر يوه غير مشهور قول باندي دفتوا غوښتنه وسوه ده نه ومنل او په جواب کي يې وويل:

ولست ممن يحمل الناس علي غير المعروف المشهور من مذهب مالک رحمة الله عليه واصحابه لان الورع قل ،بل كاد يعدم والتحفظ علي الديانات كذالک وكثرت الشهوات وكثر من يدعي العلم ويتجاسر علي الفتوي فيه فلو فتح لهم باب في مخالفت المذهب لاتسع الخرق علي الراقع، وهتكوا حجاب هيبة المذهب وهذا من المفسدات التي لاخفاء بها.(2)

ژباړه: زه دهغو خلکو څخه نه يم ،چي خلک دې ته اماده کړم ،چي دامام مالک رحمة الله عليه

---

1: رحمة الله عليه، ج :

2: الموافقات للشاطبي ، ج : ٤ ١٤٦، كتاب الاجتهاد

تللې ده ، ددينداری دساتني احساس کم سوی دئ ، دخلکو نفساني خواهشات زيات سوي دي ،دعلم دعوه کونکي زيات سوي دي ،په معاملاتوکي په فتوا ورکول کي تېز او دلاوره دي، له همدې امله که دمالکي مذهب څخه دمخالفت دروازه خلاصه سي نو داصلاح تر هځي به فساد ډېر سي ، دمذهب دويري (دبدبې) ،چي کومه پرده غوړېدلې ده هغه به څيري سي ، دايو داسي فساد دئ ،چي دخلکو څخه هيڅ پټ نه دئ او نه څوک ځني منکر کېدای سي.

علامه شاطبي رحمة الله عليه زياتوي:

فانظر كيف لم يستجز وهو المتفق علي امامته الفتوي بغير مشهور المذهب ، ولابغير مايعرف منه بناء علي قاعدة مصلحية ضرورية ، اذ قل الورع والديانة من كثير ممن ينتصب لبث العلم والفتوي ،كما تقدم تمثيله فلو فتح لهم هذا الباب لانحلت عري المذهب بل جميع المذاهب.([1])

ژباړه : تاسووګورئ ! علامه مازري رحمة الله عليه څنګه دمالکي مذهب په غيرمشهورو اقوالو باندي فتوا غلطه وبلل، دده مبارک دغه وينا دمصلحت اوضرورت دقاعدې پر بنسټ بنا ده ځکه دډېرو هغو خلکو څخه تقوا او ديانت کم سوی دئ ،چي دعلم او فتوا په نشر اوخپراوي کي بوخت دي ، لکه مخکي ،چي يې مثالونه تېر سوه ، که دوی ته

بلکي ټول مذهبونه به له منځه ولاړسي.

ابن خلدون رحمة الله عليه دشخصي تقليد دسببونو په اړه داسي ليکلي دي:

١ ٤٦

ووقف التقليد في الامصارعند هؤلاء الاربعة ودرس المقلدون لمن سواهم وسد الناس باب الخلاف وطرقه لما كثر تشعب الاصطلاحات في العلوم ولما عاق عن الوصول الي رتبة الاجتهاد ولماخشي من اسناد ذالک الي غير اهله ومن لايوثق برايه ولابدينه فصرحوا بالعجز والاعواذ وردوا الناس الي تقليد هؤلاء كل من اختص به من المقلدين وخطروا ان يتداول تقليدهم لما فيه من التلاعب .([1])

ژباړه: په ټولوښارونو کي دڅلورو امامانو تقليد حصرکړل سوی دئ دنوروامامانو تقليدله منځه تللی دئ ، خلکو دڅلورو امامانو سره داختلافاتودروازه بنده کړې ده يو لامل يې دادئ ،چي دعلومو اصطلاحات په لاس راوړل خورا پېچل سوي دي او داجتهاد تر بريده رسېدل ګران کار جوړ سوی دئ، بل لامل يې دادئ ،چي که داجتهاد لاره خلاصه سي نو دنااهله خلکو په لاس به اجتهاد ورسي ، که داسي وسي نو داسي خلک به داجتهاد ځخه ګټه پورته کړي ،چي دهغوی رايه او نظر داعتماد وړ نه وي همدا لامل و ،چي علماوو داجتهاد څخه عجز اعلان کړ، او خلک يې دڅلورو امامانو شخصي تقليد ته را وبلل او دا يې هم خلکو ته وښوول ،چي دوی دي مذهبونه بدلول او رابدلول نه کوي يعني داچي کله يو مذهب انتخابوي او کله دي بل مذهب انتخابوي داسي دي نه کوي ځکه که داسي کړنه جايز سي نو په دين به دبازيو کولو سبب جوړ سي ، حاصل داچي داصحابانو رضي الله عنهم په زمانه کي شفافيت او صفوف زيات و په هغه وخت کي مطلق تقليد کېدئ ځکه ددوی سره درسول الله صلی الله علیه وسلم دملګرتيا فيوضات وه او ددوی نفسونه ښخي مغلوب وه په ځانګړي ډول په شرعي احکامو کي پر دوی باندي

[1]: مقدمة ابن خلدون رحمة الله عليه ، ص: ۴۴۸، ط : مكتبة تجاريه كبر مصر، كتاب : ۱ ، باب : ۹، فصل : ۷.

ښځي ددې وېره نه وه ،چي دوی دي دخواهشاتو پیروي وکړي ، همداوجه وه ،چي په هغه وخت کي شخصي او مطلق دواړه تقلیدونه جایز وه ځکه په هغه کي دنفسي خواهشاتو دپیروۍ وېره نه وه ، وروسته ،چي دغه وېره پیداسوه نو تقلید یوازي په شخصي تقلید کي منحصر سو.

حقیقت دادئ ،چي که داسي نه وای سوي یعني یوازي دشخصي تقلید دلزوم پرېکړه نه وای سوې نو شرعي احکام به پر بې ساري ډولو باندي څرګند سوی وای په دین کي به داسي تفرق رامنځته سوی وای ،چي حل به یې بیا ناشونی وای.

حضرت شاه ولي الله رحمة الله علیه لیکي:

واعلم ان الناس کانوا في المائة الاولي والثانیة غیر مجتمعین علي التقلید لمذهب واحد بعینه وبعد المائتین ظهر فیهم المتذهب للمجتهدین باعیانهم وقل من کان لایعتمد علي مذهب بعینه وکان هذا هو الواجب في ذالک الزمان .([1])

ژباړه : پوه سئ! په لومړۍ اودوهمه پېړۍ کي خلک پر یوه مذهب باندي راغونډ نه وه تر دوو پېړیو وروسته دټاکلي مجتهد دتقلید رواج پیل سو ترداسي بریده ،چي ډېرکم خلک داسي پیدا کېدل ،چي دیوه مذهب تقلیدبه یې نه کاوه.

ځینوخلکوته داسوال پیداکېږي ،چي کوم شی داصحابانو رضي الله عنهم زمانه کي لازمي نه و اوس نوولي لازمي سي په دې اړه ده مبارک قناعت

۵۹، باب : ۴ ، ط: مجتبائي ، کال
: ۹۳۵

قلت الجواب الاصلي هو ان يكون في الامة من يعرف الاحكام الفرعية من ادلتها التفصيلية ، اجمع علي ذالک اهل الحق ومقدمة الواجب واجبة ، فاذا كان للواجب طرق متعددة وجب تحصيل طريق من تلک الطرق من غير تعين ،واذا تعين له طريق واحد وجب ذالک الطريق بخصوصه ... وكان السلف لايكتبون الحديث ثم صار يومنا هذا كتابة الحديث واجبة لان رواية الحديث لاسبيل لها اليوم الامعرفة هذه الكتاب وكان السلف لايشتغلون بالنحو واللغة وكان لسانهم عربيا لايحتاجون الي هذه الفنون ثم صاريومناهذا معرفة اللغة العربية واجبة لبعد العهد عن العرب الاول وشواهد ما نحن فيه كثيرة جدا وعلي هذا ينبغي ان يقاس وجوب التقليد لامام بعينه فانه قد يكون واجبا وقد لايكون واجبا.

ژباړه: ددغه پوښتني په جواب کي وايم ،چي په حقيقت کي خو بايدپه امت کي داسي وي ،چي شرعي احکام ددلايلو سره په تفصيلي ډول پيژني څو خلک مسائلي ځني زده کړي اوبيا عمل په وکړي ، پردې خبره باندي دټول امت اجماع ده البته دواجب لپاره مقدمه هم واجب دي يعني داچي که دواجب دادا لپاره ډيري لاري وي نو ديوې لاري په انتخاب سره دواجب غوښتنه پوره کيږي او که دواجب ادا لپاره يوه لاره وي نو دهمدې لاري لاسته راوړل هم واجب دي دمثال په ډول زموږ اسلافو احاديث نه ليکل خو زموږ په زمانه کي داحاديثو ليکل واجب دي ځکه

ځکه عربي ژبه دهغو مورنۍ ژبه وه ، دوی صرف ، نحو او داسي نورو علومو ته اړتيا نه درلوده مګراوس دعربي ژبي زده کړه واجب ګرځيدلې

ددې څخه دا معلومه سوه ،چي دزمانې تغير او بدلون په وجوباتو كي هم بدلون راوستاى يعني داچي يو شى په يوه زمانه كي واجب نه وي وروسته بيا واجب سي لكه پورته ،چي يې مثالونه ذكر سول ددغه جملې څخه شخصي تقليد هم دئ ،چي په تېره زمانه كي واجب نه و او اوس واجب ګرځېدلى دئ

شاه ولي الله رحمة الله عليه ليكي:

فاذا كان انسان جاهل في بلاد الهند وماوراء النهر وليس هناك عالم شافعي ولامالكي ولاحنبلي ولا كتاب من كتب هذه المذاهب وجب عليه ان يقلد لمذهب ابي حنيفة رحمة الله عليه ويحرم عليه ان يخرج من مذهبه لانه حينئذ يخلع من عنقه ربقه الشريعة ويبقي سدى مهملا، بخلاف ما اذا كان في الحرمين.([1])

ژباړه : ک،چيري كوم ناپوه كس په هندوستان او يا ماوراء النهر كي وي او هلته نه شافعي ، نه مالكي او نه حنبلي عالم وي ، نه ددغه مذهبونو څخه كوم كتاب وي پر نوموړي كس باندي دامام ابوحنيفة رحمة الله عليه تقليد واجب دئ ، همدا ډول دده مبارک دمذهب څخه وتل ورته حرام دي ځكه په دغه حالت كي نوموړى كس دشريعت دپابندۍ څخه بېخي ازاديږي او كه په حرم شريف كي و بيا نو هر مذهب ،چي يې خوښ وي هغه انتخابولاى سي.

ددې وروستۍ زمانې علماوو ،چي دشخصي تقليد په مټ دكومو لويو ګناهونو مخه نيولې ده شاه ولي الله رحمة الله عليه اشاره ورته كړې ده او ليكلي يې دي:

---

[illegible] ۲۹ [illegible].

وبالجملة فالمتذهب للمجتهدين سر الهمه الله تعالي العلماء وجمعهم عليه من حيث يشعرون او لايشعرون.([1])

ژباړه : خلاصه دا چي مذهب انتخابول داسي يو پټ سر دئ ،چي الله جل جلاله دعلماوو په زړونو کي واچوئ او دوی يې په شعوري او غيرشعوري توګه باندي متفق کړل.

په بل ځای کي شاه ولي الله رحمة الله عليه ليکي :

ان هذه المذاهب الاربعة المدونة المحررة قد اجتمعت الامة او من يعتد به منها علي جواز تقليدها الي يومنا هذا وفي ذالک من المصالح ما لايخفي لاسيما في هذه الايام التي قصرت فيها الهمم جدا واشربت النفوس الهوي واعجب كل ذي راي برايه.([2])

ژباړه : بېشکه دغه څلورمذهبونه ،چي تدوين سوې دي او په ليکلي ډول پاته دي ، ددغه مذهبونو د تقليد پرجواز باندي دټول امت اجماع ده، په دغه کار کي ،چي کومي ځانګړتيا وي سته بېخي ښکاره دي په ځانګړې توګه زموږ په زمانه کي ،چي همتونه ټيټ سوي دي او خواهشت پرستۍ دخلکو په رګونو باندي ننوتلي دي کوم کسان ،چي نظر لري هغه هر يو پر خپل نظر باندي پرېکړه کوي.

# دشخصي تقليد دلزوم يو څرګند مثال

[redacted] رحمة الله عليه [redacted]

په لومړيو پېړيو کي خلک ديوه ټاکلي مجتهد پر تقليد باندي راجمع نه وه وروسته بيا دشخصي تقليد پر کولو باندي متفق سوه او شخصي

[redacted] ٦۴

١ ص [redacted]

تقليد واجب وګرځېدئ ، يو ښکاره مثال يې دحضرت عثمانرضي الله عنه په زمانه کي دقرآن راجمع کېدل دي، دابن جريررحمة الله عليه او نورومشهور نظرونو مطابق حضرت عثمانرضي الله عنه داوو حروفو څخه شپږ حروف له منځه يو وړل يوازي دقريشو حرف يې پرېښودئ نور ټول حروف يې وسوځل ، تاسو وګورئ درسالت په زمانه کي ، حضرت ابوبکررضي الله عنه دخلافت په زمانه کي اودحضرت عمررضي الله عنه په خلافت کي دپورتني کار اجازه نه وه بلکي داوو قرئتونو څخه ،چي به هر چا غوښتي هغه به يې لوستلای سوای خو کله ،چي حضرت عثمانرضي الله عنه پوه سو ،چي که دغه اختلاف پاته سي نو ددغه اختلاف څخه به فتنه جوړه سي نوځکه يې ددې اقدام وکړ او هغه شپږ حروف يې له منځه يووړل او يو دقريشو حرف يې پرېښودئ او پرهمدې حرف باندي يې تلاوت لازم وګرځاوه.

حافظ ابن جرير طبريرحمة الله عليه دپورتنی خبري لامل داسي بيانوي:

فکذالک  الامة امرت بحفظ القرآن وقرائته وخيرت في قرائته بای الاحرف السبعة شاءت قرئت ، لعله من العلل اوجبت عليها الثبات علي حرف واحد قرائته بحرف واحد ، ورفض القرائت بالاحرف الستة الباقية.([1])

ژباړه : همدا ډول ټول امت ته امر کړل سوی و څو دقرآن حفظ وکړي او تلاوت يې وکړي خوپه دې لاره کي اختيار ورکړل سوی و ،چي داوو حروفو څخه يې هر حرف خوښ وي پر هم هغه طريقه دي يې وايي خو دځينو لاملونو په وجه پر امت باندي لازمه کړل سوه څو پر

---

[1] رحمة الله عليه ۱ ص

داسي پوښتنه حتما پيدا کېږي ،چي درسول اللهﷺ په زمانه کي اوه واړه حرفونه ويل جايز وه وروسته ناجايز سوه يوازي يوه طريقه جايز سوه نو کوم شی ،چي درسول اللهﷺ په زمانه کي جايز و هغه شی نو ولي وروسته ناجايز وګرځېدئ؟

ددغه سوال په جواب کي ابن جرير طبري رحمه الله ليکي:

امت په لومړيو کي داوو واړو حروفو اجازه ورکړل سوې وه ،چي تلاوت باندي وکړي خو دغه کار پردوی باندي واجب يا فرض نه و، وروسته امت په دې کي مصلحت وليدئ ،چي يوازي يوه حرف پاته او نور له منځه ولاړ سي نو همداسي يې وکړل هغه يو حرف يې پرېښودئ او نور يې له منځه يو وړل.

ابن جرير طبري رحمه الله زياتوي:

كان الواجب عليهم من الفعل مافعلوا اذاكان الذي فعلوا من ذالک كان هو النظر للاسلام واهله فكان القيام بفعل الواجب عليهم بهم اولي من فعل مالو فعلوه كانوا الي الجناية الي الاسلام واهله اقرب منهم الي السلامة من ذالک.([1])

ژباړه :کوم کار ،چي ددوی مبارکانو دنده وه هغه کار دوی ترسره کړ،کوم کار،چي دوی ترسره کړی دئ يعني داوو حروفو څخه يې يو پرې ايښی دئ او نور يې له منځه وړي ددوی مبارکانو دغه کار داسلام او مسلمانانو لپاره زيات ګټمن دئ تر هغه ،چي دا کار يې نه وای ترسره



١ ، ص

پرېښودئ په اړه بل نظر هم سته ،چي امام مالک رحمة الله علیه ، علامه ابن قتیبة رحمة الله علیه ، ابوالفضل الرازي رحمة الله علیه ، علامه ابن الجزري رحمة الله علیه او داسي نورو لوړو علماوو غوره کړی دئ . دغه علماء وایي ،چي حضرت عثمان رضي الله عنه نور شپږ حروف لمنځه نه دي وړي بلکي هغه حروف اوس هم په تواتر سره سته ، لوستل کېږي او محفوظ دي دحضرت عثمان رضي الله عنه یوازنی کار داو ،چي یو دقرآنکریم اړونده ده یو ټاکلی رسم الخط وټاکی.(1)

دغه دوهم نظر ته زیاتو علماوو رجحان ورکړی دئ په هر صورت که دغه نظر ومنل سي نو داهم دشخصي تقلید لپاره یو ښه مثال دئ ځکه ،چي دحضرت عثمان رضي الله عنه تر دغه کار وړاندي قرآنکریم په ډول ، ډول رسم الخطونو باندي لیکل کېدئ او ترتیب یې هم بېل ،بېل و ده مبارک دخاص مصحلت پر بنسټ دټولو رسم الخطونو څخه یو خاص رسم الخط وټاکی ، خاص ترتیب یې ورکړ، دنورو رسم الخطونو جواز یې له منځه یو وړئ او وې سوځل ، یوازي ټاکلی رسم الخط یې پرېښوو ئ.(2) په هر صورت کي که حضرت عثمان رضي الله عنه نور حروف لمنځه وړي وي یو یې پرې ایښې وي ، که یې خاص رسم الخط ټاکلی وي په دواړو صورتو



---

1: ددغه نظر دپوره تفصیل لپاره وګورئ : غرائب للنیشاپوري رحمة الله علیه بهامش ابن ... ١ ص ... ، ٢٦. ط : بهیه

2: ددغه موضوع دپوره تحقیق لپاره دي دشیخ الاسلام محمد تقي صاحب علوم القران کتاب وکتل سي.

لازم وګرځاوه همدا وجه ده ،چي دغه كار ته بدعت نه ويل كېږي ځكه دحضرت عثمان رضي الله عنه پورتنی كړنه دتقليد دجواز لپاره ښه دليل دئ.
كه ،چيري امت ته ديوې ځانګړي موخي لپاره څو لاري وركړل سوي وي نو دوى دهغو لارو څخه يوه لاره وټاكي دخپلي زمانې داصلاحاتو په نظر كي نيولو سره او دفساد دله منځه وړلو لپاره دا كار كولاى سي ،چي يوه لاره وټاكي او نوري پريږدي، دشخصي تقليد اړونده په دې لړ كي نور څه نه دي سوي.

# دڅلور مذهبونو تخصيص

كله ،چي دشخصي تقليد حقيقت او اړتيا څرګنده سوه نو يو بل سوال پيدا كېږي هغه داچي شخصي تقليد لازم سوه نوبيا ولي دڅلورو خاصو امامانو تخصيص وسو؟ ،چي خامخا به ددغه څلورو مذهبونو تقليد كېږي دبل مذهب تقليد جايز نه دئ حال داچي نور وتلي علماء هم ستة لكه سفيان ثوري رحمة الله عليه ، امام اوزاعي رحمة الله عليه ، عبدالله بن مبارك رحمة الله عليه ، اسحاق بن راهوية رحمة الله عليه ، امام بخاري رحمة الله عليه ، ابن ابي ليلي رحمة الله عليه ، ابن شبرمة رحمة الله عليه ، حسن بن صالح رحمة الله عليه او داسي نور ډېر علماء او

داسي كېداى لكه ددغه څلور مذهبونو تقليد ،چي كېږي ، وجه يې هم

داده ،چي ددغه علماوو نه كتابونه په مدون شكل پاته دي او نه يې دمذهب علماء ستهنو ځكه ددوى دتقليد لپاره هيڅ لاره نه ده پاته.

مشهور محدث علامه عبدالرؤف مناري رحمه الله دامام ذهبي رحمه الله څخه داسي نقل كړى دئ:

ويجب علينا ان نعتقد ان الائمة الاربعة والسفيانين والاوزاعي وداود الظاهري واسحاق بن راهوية وسائر الائمة علي هدى ...وعلي غير المجتهد ان يقلدمذهبا معينا...لكن لايجوز تقليد الصحابة وكذا التابعين كما قاله امام الحرمين من كل من لم يدون مذهبه فيمتنع تقليده غير الاربعة في القضاء والافتاء لان المذاهب الاربعة انتشرت وتحررت حتي ظهر تقييد مطلقها وتخصيص عامها بخلاف غيرهم لانقراض اتباعهم وقد نقل الامام الرازي رحمه الله اجماع المحققين علي منع العوام من تقليد اعيان الصحابة واكابرهم.([1])

ژباړه : پر موږ باندي لازمه ده ،چي داسي عقيده ولرو ،چي څلور ګوني امامان ، سفيان ثوري ، سفيان بن عينه ، امام اوزاعي ، داود ظاهري اسحاق بن راهوية او نور ټول امامان پر هدايت باندي دي ...كوم كس ،چي خپله مجتهد نه وي پر هغه كس باندي واجبه ده ،چي ديوه خاص امام تقليد وكړي ...البته دحرمينو دامام په آند دهغه اصحابانو ، تابعينو او امامانو ،چي مذهب يې مدون نه وي تقليد يې نه دئ جايز ، دڅلورو امامانو ماسوا دبل چا پر قول باندي په قضا او افتاء كي پرېكړه

رحمه الله پر دي

[1]: فيض القدير ، شرح الجامع الصغير للمناوي رحمه الله ج : ١، ص : ١٠

خبره باندي دامت اجماع رانقل کړې ده ،چي عوام خلک دي داصحابانو او نورومخورو اکابرينو دتقليد څخه منع سي.

پورتني خبره علامه نووي رحمة الله عليه داسي رانقل کړې ده:

وليس له المتذهب بمذهب احد من ائمة الصحابة رضي الله عنهم وغيرهم من الاولين وان كانوا اعلم واعلي درجة من بعدهم لانهم لم يتفرغوا لتدوين العلم وضبط اصوله وفروعه فليس لاحد منهم مذهب مهذب محرر مقرر وانما قام بذالک من جاء بعدهم من الائمة الناحلين لمذاهب الصحابة والتابعين القائمين بتمهيد احكام الوقائع قبل وقوعها الناهضين بايضاح اصولها وفروعها کمالک رحمة الله عليه وابي حنيفة رحمة الله عليه([1])

ژباړه : اصحابان رضي الله عنهم او دلومړی پېړۍ وتلي او مخور علماء که څه هم دعلم او مرتبې له اړخه تر وروستيو علماوو لوړ دي مګر دوی ته ددې زمنه نه ده برابره سوې ،چي دوی دي خپل علم تدوين کړي ، داصولو او فروعو مسائلي دي ضبط کړي همدا لامل دئ ،چي هيچا ته ددې اجازه نسته ،چي په دوی کي دي ديوه تقليد وکړي ځکه په دوی کي يو هم داسي کس نه دئ پيدا سوی ،چي ليکلی او ټاکلی مذهب دي ولري پر همدې بنسټ باندي دفقه شريفي تدوين وروستيو علماوو ته پاته سوی دئ داسي امامان ،چي داصحابانو رضي الله عنهم او تابعينو مذاهب يې دګل،چين په څېر راټول کړل او داسي مسائل او احکام يې وضع کړل ،چي لاپېښ سوي نه وه ، دوی مبارکانو خپل مذاهب ، اصول او فروع څرګند او تدوين کړل لکه امام مالک رحمة الله عليه او امام ابو حنيفة رحمة الله عليه.

که څه هم پردې موضوع باندي دډېرو علماوو اقوال سته مګر موږ دلته يوازي دلنډوالي او اختصار په وجه ددوو علماووويناوي رانقلوو ځکه دغه علماء دعلم او ديانت په اعتبار سره تر نورو لوړ مقام لري

[1]: المجموع شرح المذهب للنووي رحمة الله عليه ج : ١ ص : ٩١ ، فصل في اداب المستفتي.

نوموړي دوه علماءيو ابن تيميهؒ دئ او بل شاه ولي الله محدث دهلويؒ دئ.

علامه ابن تيميةؒ په خپله فتاوا کي ليکي:

وليس في الكتب والسنة فرق في الائمة المجتهدين بين شخص وشخص فمالک والليث بن سعد والاوزاعي والثوري هؤلاء ائمة في زمانهم وتقليد كل منهم كتقليد الاخر لايقول مسلم انه يجوز تقليد هذا دون هذا ولكن من منع من تقليد احد هؤلاء في زماننا فانما يمنعه لاحد شيئين احدهما اعتقاده انه لم يبق من يعرف مذاهبهم وتقليد الميت فيه خلاف مشهور فمن منعه قال هؤلاء موتي ومن سوغه قال لابد ان يكون في الاحياء من يعرف قول الميت الثاني ان يقول الاجماع اليوم قد انعقد علي خلاف هذا القول ... واما اذا كان القول الذي يقول به هؤلاء الائمة او غيرهم قد قال به بعض علماء الباقية مذاهبهم فلاريب انه قوله مؤيد بموافقة هؤلاء ويعتضد به.([1])

ژباړه: دقرآن او حديث په اعتبار سره دمجتهدينو او امامانو ترمنځ کوم توپير نسته .امام مالکؒ ، سفيان الثوريؒ اوزاعيؒ ليث بن سعدؒ دغه ټول دخپلي زمانې امامان وه داسي يې تقليد کېږي لکه دنورو ،چي تقليد کېږي هيڅ مسلمان داسي نه سي ويلای ،چي په دغه امامانو کي ديوه امام تقليد جايز نه دئ او دبل امام تقليد جايز دئ البته دکوموامامانو تقليد،چي منعه کړل سوی دئ ددوو وجوهاتو له امله سوی دئ:



ؒ

منفردا.

مشهور دئ ، ځوک دوفات سوي امام تقلید جایز نه بولي او ځوک ،چې یې جایز بولي هغه وایي حتما به په ژوندو کي داسي ځوک وي ،چې دوفات سوي عالم په اقوالو پوره علم لري. داچي دچا دمذهب په اړه پوره معلومات نه وي نو دداسي چا نو څنګه تقلید وسي، دکومو امامانو مذهبونو ته ،چي زیاته توجه سوې ده که څه هم دغه امامان وفات سوي دي یعني ژوندي نه دي خو تر دوی وروسته علماء یې دمذهب په اړه پوه او ژور معلومات لري او پیروان یې هم پاته دي له همدې امله ددوی تقلید لازمي دئ.

دوهمه وجه دهغو علماوو دمذهبونو دنه پاتېدو داده ،چي دامت اجماع ددوی دقول خلاف واقع سوي ده .کومه خبره ،چي دهغه علماوو څخه پاته وي ،چي ددې مجتهدینو دقول سره برابر وي نو دشک پرته دوروستیو علماوو وینا دهغه پخوانیو علماوو دوینا تائید کوي.

یو بل مخور او ستر عالم شاه ولي الله محدث دهلوي رحمة الله علیه په خپل کتاب عقد الجید کي په دې اړه خورا تفصیلي بحث کړی دئ او ددغه موضوع لپاره یې بېل باب ځانګړی دئ او دهغه باب نوم دئ: (باب تاکید الاخذ بهذه المذاهب الاربعة والتشدید في ترکها والخروج عنها) ددغه باب پیل په لاندي الفاظو سوی دئ:

اعلم ان في الاخذ بهذه المذاهب الاربعة مصلحة عظیمة وفي الاعراض عنها کلها مفسدة کبیرة ونحن نبین ذالک بوجوه ...الخ ([1])

---

[1]: عقد الجید في احکام الاجتهاد والتقلید ، ص : ۳۱ [redacted]
[redacted] رحمة الله علیه [redacted] و ترجمي سره.

ژباړه : پوه سئ! دڅلور ګونو مذهبونو په غوروالي کي لوی مصلحت پروت دئ ،چي مخ ځني اړول ډېر لوی فساد منځته راوړي او دا موږ په څو وجوهاتو بیانوو :

ترپورتنۍ خبري وروسته شاه صاحبؒ یاد وجوهات په پوره تفصیل سره بیان کړي ، ددغه ټولو وجوهاتو دلته دعربي متن سره بیانول خورا اوږ کار دئ ځکه اوږدوالی منځته راوړي موږ یې دلته یوازي خلاصه بیانوو :

۱ : په شریعت دپوهاوي لپاره داسلافو پر ویناووباندي اعتمادکول دټول امت په اجماع لازمي دئ ،مګردایوه خبره لازمي ده هغه داچي هغه وخت ددوی مبارکانوپر ویناوو باندي اعتماد کېدای سي ،چي دغه ویناوي په صحیح سند ترموږپوري راسېدلي وي اویاپه صحیح ډول تدوین سوي وي ، داهم لازمي ده ،چي وروستیوعلماوو ددوی پرویناووباندي شروحي کړي وي ، ددوی ویناوي یې څرګندي کړي وي او که ددوی یو نظر دڅو معناوو احتمال لري نو یوه خاصه معنایې ځني ټاکلې وي اوتر بحث کولو وروسته یې راجح کول ځني معلوم کړی وي ، همدا ډول کله داسي وي ،چي دیوه مجتهد قول عام وي مګر دده دغه قول څخه کوم خاص صورت مراد دا وي ،چي یوازي هغه علماء په پوهیږي ،چي په دنوموړي مجتهد په مذهب کي برلاسی او معلومات ولري ، دا هم لازمي ده ،چي ددغه مذهب علماء به داسي صورتونه

سوي دهغه مذهب تقلید نه سي کېدای ، موږ ،چي ا وس وګورو نو دڅلورمشهورو مذهبونو پرته دبل مذهب لپاره پورته کارونه ، نه دي

سوي ، يوازي زيديه او اماميهٔ ډلي ددې څخه مستثني دي ځکه هغوی بدعتيان (روافض) دي دهغوی تقليد کول او يا يې پر وينا وباندي اعتماد کول جايز نه دئ.

۲: شاه ولي الله رحمة الله عليه دڅلورګونو مذهبونو دتقليد دوهمه وجه داسي بيان کړې ده:

رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي:

اتبعواالسواد الاعظم.

ژباړه: تاسو دسواد اعظم پيروي وکړئ.

داچي دڅلورومذهبونوپرته نور حق مذهبونه نسته نو ځکه دڅلور مذهبونوپيروي کول دسواد اعظم اتباع ده او ددې څلورو مذهبونو څخه مخالفت دسواد اعظم څخه مخالفت دئ.

۳: شاه والي الله رحمة الله عليه دڅلورګونو مذهبونو دتقليد دريمه وجه داسي بيان کړې ده:

که چيري دڅلورو مذهبونو پرته دنورو مجتهدينو پر قول دفتوا اجازه ورکړل سي نو عُلَمَاءِ سُوء (خواهش پرسته علماء) به دخپلو نفساني خواهشاتو په وجه خپله وينا او فتوا دسلفو علماوو څخه يوه پخواني مشهور عالم ته منسوبوي او دا به وايي ،چي دا وينا فلانکی عالم کړې ده او دهغه څخه ثابته ده ، همدا لامل دئ ،چي دکوم مذهب دڅرګنوالي لپاره ،چي زيات شمېر علماء بوخت وي دداسي مذهب په

،چي دغه ويناوي به غلطي تعبير سوي وي نو ځکه ځان ځني ژغورل

لازمي دئ څو ددې لاره ډب سي ،چي خلک دخپلي خوښي پايله ځني وباسي.(1)

## دتقليد بېلابېلي درجې

الله جل جلاله لره دي حمد وي دپورتني بحث څخه دا خبره ثابته سوه ،چي دڅلورو مذهبونو څخه ديوه مذهب تقليد کول لازمي دئ ، يعني داچي دڅلورو امامانو څخه ديوه امام پر شخصي تقليدباندي زيات ټينګار کېږي.

اوس موږ تاسو ته يو اړين او ګټور وړانديز کوو ،چي دتقليد ددرجو اړونده دئ يعني داچي تقليد بېلابېلي درجې لري او دتقليد دبېلوالي له امله بېلابېل احکام لري ، که ددغه درجو توپير ونسي نو زيات تاوانونه به رامنځته سي کوم خلک ،چي پرتقليد باندي نيوکي او اعتراضونه کوي زماله آنده دوی دتقليد ددرجو ترمنځ توپير نه سي کولای او يا دتقليد درجې نه ورته معلومېږي نظر ځني اړوي موږ ددغه درجو بيان په لاندي ډول باندي کوو :



٣١ ٣

دمولانا محمد حسن نانوتوي رحمة الله عليه ، داردو ترجمې سره.

# دعوامو خلكو تقليد

ترټولو وړاندي دعوامو دتقليد درجه ده دلته په دې ځای کي دعوامو خلکو څخه لاندي کسان مراد دي:

الف : هغه خلک ،چي دعربي ژبي اونورو اسلامي علومو اړونده هيڅ معلومات نه لري نور علوم لازم نه دي په هغه کي که معلومات لري او که يې نه لري خو دلته يوازي اسلامي علوم مراد دي.

ب : هغه کسان ،چي په عربي ژبه پوهيږي مګر په تفسير ، فقه ، حديث او نورو اړونده ديني علومو داسي نه پوهيږي ،چي پر استاد باندي يې ويلي وي او په حقيقي ډول په پوه وي.

ج : هغه کسان ،چي په رسمي ډول داسلامي علومو څخه فارغه وي مګر په تفسير، حديث او فقه کي پوره مهارت ، بصيرت او بر لاسی نه لري.

پورته درې ډلي خلک ،چي ذکر سوه درې واړه ډلي دعوامو په لړليک کي داخل دي يعني داچي په تقليد کي دعوامو په څېر دي دتقليد په

استنباط وکړي.يا دي دمتعارضو احاديثو تطبيق وکړي او بيا دي دترجيح فيصله وکړي له همدې امله پردغه کسانو باندي لازمه ده ،چي دوی ديوه مجتهد لمن ټينګه ونيسي دهغه څخه ديني احکام زده کړي او بيا عمل په وکړي ځکه دوی خپله اجتهاد نه سي کولای نوبله چاره نه

لري پرته له دې ،چي تقليد وکړي لکه ،چي علامه خطيب بغدادي رحمة الله عليه ليکي:

اما من يسوغ له التقليد فهو العامي الذي لايعرف طرق الاحكام الشرعية فيجوز له ان يقلد عالما ويعمل بقوله ... ولانه ليس من اهل الاجتهاد فكان فرضه التقليد كتقليد الاعمي في القبلة فانه لما لم يكن معه آلة الاجتهاد في القبلة كان عليه تقليد البصير فيها.([1])

ژباړه : داچي چاته تقليد جايز دئ ؟ هغه عام سړی دئ هغه سړی ،چي دشرعي احکامو طريقې نه ورته معلوميږي نو داسي کس ته پکارده ،چي ديوه عالم تقليد وکړي او بيا يې په وينا عمل وکړي ... ځکه داسي کس داجتهاد کولو جوګه نه دئ نو پرده باندي تقليد کول فرض دئ لکه ړوند سړی ،چي په قبله کي دليدونکي کس تقليد کوي په داسي حال کي ،چي دړانده سره دقبلې پيدا کولو کومه آله شتون نه لري دداسي ړانده لپاره لازمي ده ،چي دليدونکي کس دقبلې په تعين کي تقليدوکړي.

ددغه مرتبې لرونکي کس ته هيڅ جايزه نه ده ،چي ددلائلو په بحث ځان مشغول کړي يا دا ،چي راجح قول په خپل فکر سره پيدا کړي او بيا په هغه عمل وکړي ځکه داسي کس ددې جوګه نه دئ ،چي دمجتهدينو

چي دده دامام دنظر سره مخالف و بيا هم دده

[1]: الفقيه المتفقه للخطيب البغدادي ،ج : ١ ، ص : ٦٨ ، ط: دارالافتاء السعودية ، رياض . نېټه : ١٣٨٩هـ.

لپاره لازمي او فرض ده ،چي دخپل امام تقليد وکړي اودحديث په اړه دي داسي فکر وکړي ،چي زه دحديث په مفهوم پوه سوی نه يم او يا دي داسي فکر وکړي ،چي زما دامام سره حتما داسي قوي دليل سته ،چي تردې حديث قوي دئ.

که څه هم په ښکاره داخبره ډېره عجيبه معلوميږي ،چي مقلد دي دحديث عمل پريږدي دمجتهد قول دي عملي کړي او دحديث دي تاويل کړي مګر دداسي مقلد لپاره ،چي اوس موږ بحث کوو بله چاره نسته ځکه که دغه ډول مقلد په حديث عمل کولو باندي اجازه ورکړل سي اوددې اجازه ورکړل سي ،چي هر کله دي دخپل امام قول دحديث څخه مخالف وليدئ دامام قول پرېږده په حديث عمل کوه نو يو لوی تاوان به رامنځته سي او پايلي به يې ډيري خطرناکه وي ، بالاخره به دغه کس په يولويه ګمراهي کي لوېدلی وي ځکه دقران او حديث څخه دمسائلو استنباط خوار وسيع ، عميق او پراخ فن دئ که ديو کس ټول عمر هم په دغه فن کي مصرف سي بيا هم ورته ګرانه ده ،چي دقران او حديث څخه دي دمسائلو استنباط وکړي ځکه ډېر وخت داسي پيښيږي ،چي ديوه حديث څخه يو مفهوم ثابت سي مګر دقرآن او حديث دنورو

دلاروښانتيا لپاره ويلای سم ،چي زما خپله تجربه ده ،چي څوک دقرآن او حديث باندي په عميق ډول پوه نه وي او عميقه مطالعه يې نه لري دحديثو کتابونه مطالعه کړي او بيا عملورباندي کوي دداسي کس څخه به ستره اشتباه سوې وي لار ورکی او ګمراه سوی به وي ځکه زما يو دوست ،چي تعليم لرونکی او دمطالعې سره يې هم زياته مينه درلوده

په ځانګړي ډول دحديثو مطالعه يې ښخي زياته کول ، دده په ذهن کي داشي کښېناستلی و ،چي که زه کوم حديث پيدا کړم ،چي دحنفي مذهب څخه مخالف وي نو زه به په حديث عمل کوم او مذهب به پرېږدم ، يوه ورځ يې زما په مخکي يو چاته وويل ،چي دانسان ددبري څخه ،چي کوم باد راووزي ،چي اواز او بوغ ونه لري اودس نه په ماتيږي ده ،چي دا خبره وکړه زه پوه سوم ،چي دا غريب په حديث نه دئ پوه سوی ما ډيري خبري ورته وکړې ده په جواب کي راته وويل ،چي زه څنګه ترحديث تېر سم ما په حديث کي ليدلي دي ،چي دغه ډول باد اودس نه ماتوي ، بيا ما په پوره تفصيل بيان ورته وکړ، ،چي ته په حقيقت نه يې پوه سوی دحديث مفهوم داسي نه دئ لکه تا ،چي فهمولی دئ، ده په جواب کي راته وويل ،چي داخو زه ډېره وخته په دې عقيده ،چي دغه باد اودس نه ماتوي ، خدای خبر ،چي داسي ما څومره لمونځونه کړي وي يعني څومره لمونځونه به مي بې اودسه کړي وي.

داچي نوموړی کس په دومره لويه غلطي اخته سوی و، لامل يې داوو ،چي ده خوارکي دترمذي شريف لاندي حديث ليدلی و :

عن ابي هريرة رضي الله عنه ان رسول الله صلى الله عليه وسلم قال : لاوضوء الا من صوت او ريح.

[redacted] رضي الله عنه څخه روايت سوی دئ ،چي رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي يوازي دهغه باد څخه اودس سته ،چي بوغ ولري او يابوی ولري.

دپورتني حديث ترڅنګ يې لاندي هم ليدلی دئ:

اذا كان احدكم في المسجد فوجد ريحا بين اليتيه فلايخرج حتى يسمع صوتا او ريحا.([1])

[1]: جامع الترمذي ، ج : ۱ ص : ۳۱ [redacted]

ژباړه : کله ،چي ستاسو څخه يو کس دخپلوکوناتو په منځ کي باد محسوس کړي نو تر هغه دي دمسجد څخه نه وزي څو ،چي ددغه باد ږغ يې نه وي اورېدلی او يا يې بد بوی نه وي محسوس کړی.

هغه زما دوست ددغه حديث دظاهرالفاظو څخه دامقصد ترلاسه کړی و ،چي څوک که دباد احساس وکړي نو ترهغه يې اودس مات نه دئ څو ،چي ددغه باد ږغ يې اورېدلی نه وي او يا يې بد بوی محسوس کړی نه وي ، حال داچي دټولو فقهاوو پر دې خبره اتفاق دئ ،چي دغه حديث او ددغه حديث مفهوم دهغه چا لپاره دئ ،چي وسواسي او ډېر ژر يې په اودس ماتېدو کي شک پيدا کېږي نو ددغه کس لپاره داحکم دئ ،چي تر هغه پوري يې اودس نه ماتيږي څو ،چي دباد وتلو يې داسي يقين نه وي راغلی لکه ،چي يې ږغ واوري اويايې بوی محسوس کړي يعني داچي څوک ددغه باد ږغ واوري او يا يې بوی محسوس کړي نو يقيني خبره ده ،چي اودس يې ماتيږي ، هغه سړی ،چي وسواسي وي دهغه لپاره هم داحکم دئ ،چي هغه وخت يې اودس ماتيږي ،چي پوره يقين يې راځي.

همدا ډول په يو بل حديث کي راځي ،چي ددغه مطلب ښه څرنګوالی په راځي حديث په دې ډول دئ:

اذا كان احدكم في الصلوة فوجد حركةفي دبره احدث او لم يحدث فاشكل عليه فلاينصرف حتي يسمع صوتا اويجد ريحا.([1])

ژباړه : که ستاسو څخه يوه کس ته په لمانځه کي په کوناتو کي حرکت محسوس سو او داسي شک ورته پيدا سو ،چي دده به اودس مات

---

[1]: سنن ابي داود ، ج : ١ ص : ٢۴ ، باب من شک في الحدث.

سوی وي که یا؟ نو تر هغه پوري دي دلمانځه څخه نه ګرځي یعني اودس یې نه دئ مات شو ،چي اوازیې نه وي اوریدلی اویا یې بد بوی نه وي محسوس کړی.

همدا ډول په یو بل روایت کي راځي ،چي عبدالله بن زید ﷺ فرمایلي : رسول الله ﷺ پورتنی جواب داسي چا ته ووایه ،چي وسواسي و دوسوسې په ناروغۍ باندي اخته و.

داچي احادیث په بېلابیلو طریقو اوالفاظو سره راځي نو ،چي ټولي طریقې او الفاظ سره راجمع سي هغه کس مطلب ځني اخستلای سي ،چي په حدیثو کي مهارت او برلاسی ولري یوازي ،چي څوک په کتاب کي حدیث ووایي او یا یې یوازي ترجمه ولولي په دې کار سره د حدیث څخه څوک صحیح مفهوم نه سي اخستلای او نه حقیقي مطلب ځني پورته کولای سي.

همدا ډول که هر چاته دا اختیار ورکړل سي ،چي که تا داسي حدیث ولیدئ ،چي ستا مذهب ورسره مخالف و نو خپل مذهب پرېږده په دغه حدیث عمل کوه کېدای سي ،چي دغه کس ته دي دترمذي شریف لاندي حدیث هم تر نظر تیر سي ،چي راغلي دي:

عن ابن عباس ﷺ [redacted] ﷺ [redacted] ﷺ [redacted]
([1]

[redacted] ﷺ [redacted] ﷺ په مدینه منوره کي دماپښین او مازدیګر لمونځه یوځای وکړه ، دماښام او

[1]: ترمذي ، ج : ۱ ص [redacted].

ماخوستن لمونځه يې يوځاى وكړه ،هيڅ وېره او باران هم نه ، چا دابن عباس رضي الله عنه ځخه پوښتنه وكړه ،چي رسول الله صلى الله عليه وسلم ولي داكار وكړ؟ څه حكمت يې پكښې و؟ ابن عباس رضي الله عنه وفرمايل: درسول الله صلى الله عليه وسلم داكار ددې لپاره و ،چي دده مبارك پر امت باندي څه تكليف رانسي.

دپورتني حديث دښكاره الفاظو ځخه داسي معلومېږي ،چي هر څوك كولاى سي ،چي په كور كي وي دعذر ، ويري او سفر پرته دماپښين لمونځ دمازديګر په وخت كي دمازديګر دلمانځه سره يوځاى وكړي او دماښام لمونځ دماخوستن په وخت كي دماخوستن دلمانځه سره يوځاى وكړي.

كله ،چي څوک پورتنی حديث ترنظر تير كړي او بيا خپل مذهب وګوري ،چي ددې حديث سره مخالف وي نو دى وايي ،چي زه خپل مذهب نه منم زه په دې حديث عمل كوم حال داچي څلور واړه مذهبونه او اهل حديث په يوه خوله پردې باور دي ،چي دعذر پرته جمع بين الصلاتين يعني ددوو لمونځونو په يوه وخت كي جمع كول ناجايز دي.

څرګنده خبره ده ،چي دقرآن اوحديث په رڼا كي نه يوازي داحنافو بلكي دڅلور واړه مذهبونو او اهل حديثو لهآنده پورته حديث پر جمع صوري

(

صلى الله عليه وسلم

دماپښين لمونځ په آخر وخت كي ادا كړ، اودمازديګر لمونځ يې په اول

١ ، ص: ٦٦ .

کي يې هم ادا کولای سي څو دمسلمانانو څخه تکليف پورته سي ،همدا ډول رسول الله ﷺ دماښام او ماخوستن په لمونځونو کي پورته کړنه ترسره کړه، په ښکاره داسي معلوميږي ،چي رسول الله ﷺ دوه لمونځونه پر يوه ځای باندي ادا کړه مګر په حقيقت کي يې په دوو وختونو کي ادا کړه همدې کار ته جمع صوري ويل کيږي.

پورته ،چي دوه حديثونه ذکرسوه يوازي دنمونې لپاره وه که نه نو داسي ډېر احاديث سته ،چي څوک په قرآن او حديث کي پوره مهارت نه لري او دا حديث وګوري نو خامخا به تېروتنه وکړي په غلطۍ به اخته سي ، همدا لامل دئ ،چي علماء وايي : کوم کس ،چي په ديني علومو کي پوره برلاسی نه لري هغه ته پکارده ،چي دحديث مطالعه دماهر استاد دلارښوونې پرته ونه کړي.

ترپورتنيو خبرو وروسته داخبره هم درسره ياد لرئ ،چي ديوه مجتهد امام تقليد هغه وخت کېدای سي ،چي دقرآن او حديثو په دلايلو کي تعارض محسوس سي ، همدا وجه ده ،چي کله په يوه مسئله کي دامام ابوحنيفة رحمه الله او امام شافعي رحمه الله ترمنځ اختلاف وي معلومه خبره ده ،چي ددغه دوو امامانو دواړو سره دلايل سته.

سي کولای هغه ته پکارده ،چي مذهبونو څخه دي ديوه مذهب تقليد وکړي.

داچي په يوه اختلافي مسئله کي دامام ابوحنيفة رحمه الله او امام شافعي رحمه الله دواړو سره دلايل سته يعني هر يو دځان لپاره آيت يا حديث دليل لري نو ته ،چي په ديني علومو کي پوره معلومات نه لري

رحمه الله

رحمه الله

ځکه تاته مخکي هم دا معلومه ،چي امام شافعي رحمه الله خامخا يو دليل لري دا چي امام ابو حنيفة رحمه الله دغه دليل پرې ايښى دئ خامخا بل دليل لري هغه داسي دليل دئ ،چي د امام شافعي رحمه الله تر دليل قوي او ټينګ دئ ته نو داسي مه کوه ،چي ددواړو امامانو دلايل دي نه وي مطالعه کړي خپل مذهب پرېږدې بلکي دلته ،چي موږ دکومي درجې دمقلد بحث کوو هغه داسي مقلد دئ ،چي ددلايلو دتوپير او تميز وړتيا نه لري يعني دا نه سي معلومولاى ،چي ددواړو امامانودلايل سره پرتله کړي او بيا دي يودليل قوي او راجح وبولي او بل دليل دي ضعيف او مرجوح وبولي ځکه مخکي موږ وويل ،چي ددغه درجې مقلد دتوپير او تميز وړتيا نه لري نو ځکه ده لره پکار ده ،چي يوازي دخپل امام تقليد وکړي او کله که يې داسي دليل وليدئ ،چي دده دمذهب خلاف و ورته پکار ده ،چي ووايي : دا داسي دليل دئ ،چي زه يې پوره په مفهوم نه يم پوه سوى اويا يې په محمل باندي زما عقل نه دئ رسېدلى.

ددې مثال داسي دئ لکه ،چي ځوک ځان ديو هيوادپه قانون پوهول غواړي نو داسي نه کوي ،چي پر خپل سر باندي کتابونه مطالعه کړي بلکي دخپل سري کتابونوپرځاى يو قانون پوه ته ورځي دهغه ځخه زده کړه کوي، که دغه کس ديوه داسي قانون پوه ځخه زده کړه کړې وي ،چي دهغه پوهه منل سوې وي ، پوښتونکي کس ته هم دا ثابته وي ،چي دغه

صحيح ده بلکي ورته پکارد ه ،چي داسي فکر وکړي ،چي دقانون پوه خبره درسته ده اوزه په هغه عمل کوم داچي په دې کتاب کي دقانون دخبري خلاف وينا سوې ده نو اصلا زه ددې کتاب په جمله نه يم پوه سوی اوصحيح مطلب مي نه دئ ځني اخستی ځکه دقانون دکتابونو څخه هرڅوک صحيح مطلب نه سي پورته کولای بلکي ددې کار لپاره پوره مهارت او تجربې ته اړتيا سته.

پورتنی مثال پر قرآن او حديث باندي صادقيږي يعني داچي څوک دقرآن او حديث څخه دشرعي احکامو استنباط کوي کلکه دې ته اړتيا لري ،چي په ديني علومو کي پراخ مهارت اوبرلاسی ولري همدا لامل دئ ،چي زموږ علماوو فرمايلي دي : عاموخلکو ته هيڅ اجازه نسته ،چي مستقيما دقرآن او حديث څخه دمسائلو استنباط وکړي بلکی دوی ته پکار ده ،چي فقيهو علماوو ته رجوع وکړي ، که فرضا يو عام سړي ته يوه مفتي غلطه فيصله ورکړې وي نو ددې مسئلې دغلطتيا ګناه پر عام سړي نسته بلکي ګناه يې پرمفتي ده او که عام سړی پر خپل سرباندي دحديثونو مطالعه وکړي او دخپل سوال جواب مستتقيما دقرآن او يا حديث څخه واخلي او دی په خپله دغه جواب کي تېروتلی وي نو ګناه يې پر ده باندي ده ځکه دقرآن او حديث څخه مستقيما دمسائلو استنباط دده کار نه و بلکي دده کار داو ،چي ديوه مفتي څخه دخپلي پوښتني جواب وغواړي.



وكړ، دغه كس ،چي روژه يې ماته نه وه په قصدي توګه يې خوراک او څېښاک وكړ، په اړه يې هدايه ووايي ،چي پر دغه كس باندي يوازي قضا سته او كفاره باندي نه سته وجهه يې داسي بيانوي:

لان الفتوا دليل شرعي في حقه.

ژباړه : ځكه ددغه عام سړي په اړه فتوا شرعي دليل دئ.

او كه كوم كس دابوداود ،ترمذي اونورو كتابونوهغه حديث مطالعه كړي ،چي رسول الله ﷺ په روژه كي تېرېدئ پر ښكرلګونكي يې سترګي وموښتي نو وې فرمايل:

افطر الحاجم والمحجوم.([1])

ژباړه : دښكرلګونكي او ورلګونكي دواړو روژه ماته سوه.

كه دپورتني حديث څخه څوک دا مطلب واخلي ،چي په ښكر لګولو سره هغسي روژه ماتيږي نو نور شيان هم وخوري ، امام ابي يوسف رحمه الله فرمايي ،چي پر دغه كس باندي قضااوكفاره دواړه لازم

---

[1]: داحديث سندا صحيح دئ مګرپه صحيح بخاري كي يوبل حديث هم راغلی دئ ﷺ په خپله دروژې پر مهال ښكر لګولی دئ. همدا ډول په نسائي رضي الله عنه رحمه الله رحمه الله وايي ،چي د (افطر الحاجم والمحجوم) حكم يا خومنسوخ سوی دئ اويا رسو دڅه خاصي وجهي پربنسټ څه خاصو كسانو ته اجازه كړې ده اودې ته ورته نوري يوشمېر وجوهات هم راغلی دي. دلا زياتومعلوماتو لپاره وګورئ: تحفة الاحوذي ، ج ٦٥.

دي ځکه پردغه کس باندي دمفتي څخه پوښتنه کول لازم وه اوده پوښتنه ونه کړه. امام ابويوسف رحمه الله فرمايي:

لان علي العامي الاقتداء بالفقهاء لعدم الاهتداء في حقه الي معرفة الاحاديث.([1])

ژباړه: ځکه پر عامي باندي لازمه ده، چي دفقهاوو تقليد وکړي ځکه دی داحاديثو څخه دصحيح نتيجې ايستلو جوګه نه دئ.

خلاصه داچي دتقليد دغه لومړی درجه دعواموليپاره تاکل سوې ده دوی ته پکار ده، چي په هره مسئله کي دخپل امام تقليد وکړي، په هرحالت کي دي دخپل امام په قول عمل کوي، که يې داسي حديث پيدا کړ، چي دده دامام دوينا خلاف و نوداسي فکر دي وکړي، چي زه ددې حديث په صحيح مطلب او مفهوم نه يم پوه سوی، زما مذهب، چي کوم حديث ددې مسئلې اړونده لري هغه حتما تردغه حديث قوي دئ، دعام سړي ليپاره ددې پرته بله هيڅ چاره نسته او که داسي ونه سي نو په دين کي به ډېر سخت او شديد اختلافات پيدا سي او دادين به پر ډېرو برخو وويشل سي.

# دجيد او متبحر عالم تقليد

## دتقليد دوهمه درجه:

دتقليد دوهمه درجه دجيد او متبحر عالم ده.



[1]: هداية، ج: ١، ص: ٢٦

اوتدريس په کارونو کي مشغول وي ، تفسير ، حديث ، فقه او ددوی ارونده اصول يې په ياد وي ، دهر ډول مسئلې په څېړنه کي دپخوانيو مخورو علماوو دنظرياتو او ويناوو څخه ښه استفاده کولای سي ، همدا ډول ددوی دتصنيف دکړنلاري او استدلال څخه معلومات ولري.

شاه ولي الله رحمه الله دداسي عالم تقليد د (متبحر في المذهب) په نوم ياد کړی دئ او په اړه يې ويلي دي:

فصل في المتبحر في المذهب وهو الحافظ لكتب مذهبه من شرطه ان يكون صحيح الفهم عارفا بالعربية واساليب الكلام ومراتب الترجيح متفطنا لمعاني كلامهم لايخفي عليه غالبا تقييد مايكون مطلقا في الظاهر والمراد منه المقيد واطلاق ما يكون مقيدا في الظاهر والمراد منه المطلق.([1])

ژباړه : متبحر في المذهب هغه کس دئ ،چي دخپل مذهب کتابونه يې ياد وي ، شرط يې دادئ ،چي صحيح الفهمه وي، په عربي ژبه او دکلام په طريقو به پوهيږي ، دخپل مذهب داقوالو دترجيح په مراتبو به پوهيږي ، دفقهاوو په ويناوو به ښه پوهيږي ، کوم کلام ،چي په ښکاره مطلق وي او په حقيقت هغه کي هغه کلام مقيد وي ده ته به يې معلومات کېږي پټ به باندي نه وي او يا داسي وي ،چي په ښکاره مقيد وي خو په معنا کي مطلق وي ددې معلومات به هم ورته وي.

دپورتني کس تقليد دعوامو خلکو دتقليد څخه په لاندي شيانو کي بېل دئ:

[1]: عقد الجيد ، ص

۱ : دغه ډول عالم دعوامو په څېر يوازي په مذهب پوه نه وي بلکي دمذهب دپوهي ترڅنګ دمذهب په دلايلو هم لږترلږه پوه وي.

۲: پورتنی عالم ديوه مفتي په حيث دخپل مذهب په ټولو بېلابېلو اقوالو خبر وي او ددې جوګه وي ،چي دخپل عرف او زمانې دمسائلو دحل لپاره دخپل مذهب يو قول اختيارولای سي اويا ديوه مذهب تشريح کولای سي، همدا ډول دهغه مسائلو حل دمذهب داصولو په رڼا کي کولای سي ،چي په پخوانيو کتابونو کي نه وې په اوس زمانه کي پيدا سوي وي.(1)

۳: داسي عالم کولای سي ،چي کله ، کله دخپل مذهب دامام پرځای دبل مجتهد پر قول فتوا ورکړي ،چي شرايط يې د اصول الفقه او اصول الفتاوی په کتابونو کي موجود دي.(2)

که ددوهمي درجې مقلد ،چي عالم دئ داسي حديث يې پيدا کړ، ،چي دده دمذهب څخه خلاف و او ددې حديث په مقابل کي کوم بل قوي دليل هم نه و ، په دې اړه شاه ولي الله رحمه الله ليکي :

اذا وجد المتبحر في المذهب حديثا صحيحا يخالف مذهبه فهل له ان ياخذ بالحديث ويترک مذهبه في تلک المسئلة؟ في هذه المسئلة بحث طويل واطال فيها صاحب خزانة

---

2: داصول الفتاوا ترڅنګ وګورئ : ردالمحتار للشامي ، ج : ۲ ص ۲۰۰، کتاب السرقة، مطلب يعذر العمل بمذهب الغير .الخ

ژباړه : که يو متبحر عالم داسي حديث پيدا کړ، ،چي دده دمذهب څخه مخالف و ، په دغه وخت کي نودغه عالم کولای سي ،چي خپل مذهب پرېږدي که يا؟په دې مسئله کي خورا اوږد بحث دئ او صاحب خزانة په پوره تفصيل سره ددستور السالکين څخه رانقل کړی دئ ،موږ يې دلته په کټ مټ ډول رانقلوو.

تر پورتنۍ خبري وروسته شاه ولي الله رحمه الله په تفصيلي ډول سره بحث کړی دئ او فرمايلي يې دي :

ځيني علماء په دې آنددي ،چي متبحر عالم ته پکار ده ،چي دخپل مذهب تقليد وکړي ځکه دی لا داجتهادمرتبې ته نه دئ رسېدلی ، بلکه وجهه داده ،چي کېدای سي دده امام داسي يو دليل ليدلی وي ،چي ده نه وي ليدلی.

دزياتو علماوو نظرداد ئ ،چي داسي متبحر عالم کي دخپل امام دحکم ټول اړخونه څېړلي وي ، ټول دلايل يې ترنظرتېر کړی وي نو ده لره پکار ده ،چي دقوي حديث په مقابل کي خپل مذهب پرېږدي خو داخبره لازمي ده ،چي شرطونه به يې موجود وي شرطونه يې په لاندي ډول دي:

۱: لومړی شرط يې دادئ ،چي خپله به يې دمتبحر عالم او دعلم ټول اړين شرطونه پوره کړي وي.

۲ : دوهم شرط دادئ : کوم حديث ،چي ده ليدلی دئ دهغه اړوند به ده پوره باور تر لاسه کړی وي يعني داچي دټولو محدثينو له آنده به هغه حديث صحيح وي ، ځکه ډېر وخت داسي وي ،چي ديوه حديث په سند کي اختلاف وي ځيني يې صحيح بولي او ځيني يې ضعيف بولي کوم مجتهدين ،چي يې صحيح بولي هغه عمل په کوي اوکوم مجتهدين ،چي ضعيف بولي هغه عمل نه په کوي که داسي حديث وي نو حتماًدده امام دخپل نظر مطابق پر نوموړي حديث باندي دضعف

پرېکړه کړې ده او عمل یې نه دئ باندي کړی په داسي حدیث سره متبحر عالم خپل مذهب نه سي پرېښوولای ځکه دی دومره علم نه لري لکه مجتهد ،چي یې لري.

۳ : دریم شرط دادئ ،چي ددغه حدیث په خلاف به بل کوم آیت یا حدیث موجود نه وي.

۴: څلورم شرط دادئ ،چي دغه حدیث به داسي څرګند وي ،چي په معنا کي به یې هیڅ ناڅرګندتیا موجوده نه وي ، بلکي ښه ښکاره معنا به یې وي ځکه ډېر وخت داسي وي ،چي یو حدیث دڅو معناوو احتمال لري او مجتهد په خپل بصیرت سره ددغه معناوو څخه یوه معنا ټاکلې وي ، په داسي حالت کي ځوک نه سي ویلای ،چي دا حدیث دمذهب څخه مخالف دئ بلکي په داسي حالت کي مقلد عالم نه سي کولای ،چي ددغه حدیث بل مطلب واخلي ،چي دده دمذهب دامام څخه مخالف وي ځکه دتقلید موخه داده ،چي که یو آیت یا حدیث دڅو معناوو لرونکی و ، نو ددې پرځای ،چي ته په خپل فکر او نظر سره ددغه معناوو څخه یوه ټاکې دیوه مجتهد نظر په دغه ځای کي ومنه او عملي یې کړه.

که دغه څلور واړه شرطونه موجود نه وه نو موږ داسي پرېکړه نه سو

۵: داخبره هم لازمي ده ،چي پنځم شرط هم پکښې موجود وي ، پنځم شرط دادئ ،چي دغه حدیث به دڅلور امامانو دنظر څخه مخالف نه وي

[1]: پورته څلور شرطونه دحکیم الامت مولانا اشرف علي تهانوي رحمه الله

.۴۴ ۴۳

ځکه که مخالف وي نو زیات تاوانونه او فسادونه لري ،چي مخکي یې بیان وسو.(1)

په دې اړه دشیخ الاسلام علامه نووي رحمه الله اونورو ډېرو مخورو علماوو څرګندوني کړي دي ، شیخ الاسلام علامه نووي رحمه الله لیکي:

قال الشیخ ابوعمرو فمن وجد من الشافعیة حدیثا یخالف مذهبه نظر ان کملت الات الاجتهاد فیه مطلقا ، اوفي ذالک الباب او المسئلة کان له الاستقلال بالعمل به ، وان لم یکمل وشق علیه مخالفة الحدیث بعد ان بحث فلم یجد لمخالفته عنه جواب شافیا فله العمل به ان کان عمل به امام مستقل غیر الشافعي ، ویکون هذا عذرا له في ترک مذهب امامه هنا ، وهذا الذي قاله حسن متعین.(2)

ژباړه : شیخ ابوعمر(ابن الصلاح ) فرمایي: که یو شافعي مذهب کس داسي حدیث پیدا کړ،چي دده دمذهب څخه مخالف و ، دغه کس که داجتهاد مرتبې ته رسېدلی و، یا په دغه باب اویاپه دغه مسئله کي داجتهاد مرتبې ته رسېدلی و نوپه دغه حدیث باندي عمل کولای سي او که نه و رسېدلی ، پوره هلي ځلي یې وکړې دمخالفت لپاره یې کوم شافي جواب پیدا نه کړ، او دحدیث مخالفت ورته ګران معلومېدئ کولای سي ،چي په دغه حدیث عمل وکړي خو په دې شرط سره ،چي په دغه حدیث باندي دامام شافعي رحمه الله پرته بل مستقل امام هم عمل



1: دغه شرط دعقد الجید ، ص: ۵۸ څخه اخستل سوی دئ.

2: المجموع شرح مهذب ، ج :

حضرت شاه ولي الله رحمه الله هم دغه خبره غوره ګڼلې ده او فرمايلي يې دي:

والمختار ههنا هو قول ثالث ، هو ما اختاره ابن الصلاح وتبعه النووي رحمه الله وصححه الخ.([1])

ژباړه : دريم قول غوره او بهتردئ ، نوموړی قول ابن الصلاح غوره کړی دئ ، امام نووي رحمه الله يې پيروي کړې ده او صحيح يې بللی دئ.

شاه ولي الله رحمه الله تر پورتنۍ وينا وروسته دعلامه نووي رحمه الله بيان رانقل کړی دئ او ليکلي يې دي:

داصول فقه دعلماوو تر منځ په دې خبره کي اختلاف سته ،چي يو کس په ټولو احکامو کي مجتهد نه وي مګر په يوه مسئله او يا يو باب کي داجتهاد مرتبه ورته حاصله سي. ځيني علماء په دې آند دي ،چي داسي نه سي کېدای بلکي يو کس ته ،چي داجتهاد مرتبه رسيږي هغه وخت رسيږي ،چي په ټولو احکامو کي مجتهدانه نظر ولري ، ځيني علماء بيا په دې آند دي ،چي يو اجتهاد تجزيه قبلولای سي او وايي ،چي په يوه باب او يا يوه مسئله کي هم چا ته داجتهاد مرتبه رسېدلای سي لکه ،چي علامه تاج الدين رحمه الله او علامه محلي رحمه الله ليکي :

(والصحيح جواز تجزئ الاجتهاد) بان تحصل لبعض الناس قوة الاجتهاد في بعض الابواب كالفرائض بان يعلم ادلته باستقراء منه او من مجتهد كامل وينظر فيها.

ژباړه: صحيح خبره داده ،چي اجتهاد تجزيه قبلولای سي ، په داسي ډول ،چي ځينو خلکو ته دي داجتهاد قوت په ځينو بابونو کي حاصل سي لکه په فرائضو کي ،چي داجتهاد قوت حاصلېدای سي البته ،چي ده ته

---

[1]: عقد الجيد ، ص

په لټون او استقراء سره ټول دلایل معلوم وي او یا دیوه مجتهد په مرسته يې پر دلایلو باندي احاطه کړې وي.
علامه بناني رحمه الله دجمع الجوامع په شرحه کي ليکي:
ان الاجتهاد المذهبي قد يتجزء فربما يحصل لمن هو دون المجتهد الفتيا في بعض المسائل.([1])
ژباړه: يقيني خبره ده ،چي اجتهاد تجزيه کېدای سي دهمدې خبري په نظر کي نيولو سره دغه مرتبه هغه چاته هم حاصلېدای سي ،چي دمجتهد الفتيا تر مرتبې يې مرتبه ټيټه وي.
همدا ډول داصول فخر اسلام بزدوي رحمه الله په شرحه کي علامه عبدالعزيز بخاري رحمه الله ليکي :
وليس الاجتهاد عند العامة منصبا لايتجزء بل يجوز ان يفوز العالم بمنصب الاجتهاد في بعض الاحكام. ([2])
ژباړه: اجتهاد داسي منصب نه دئ ،چي تجزيه نه سي قبلولای بلکي کېدای سي ،چي په ځينو مسئلو کي داجتهاد منصب يو عالم ته ورپه برخه سي او په بعضو مسئلو کي دي بيا داجتهاد مقام ورنه کړل سي.
امام غزالي رحمه الله ليکي:
وليس الاجتهاد عندي منصبا لايتجزء بل يجوز ان يقال للعالم بمنصب الاجتهاد في بعض ([1])

---

رحمه الله
٢ ص : ٤٠٣، ٤٠٤،ط : المكتبة التجارية الكبري مصر.
١١٣٧، باب معرفة احوال المجتهدين.

ژباړه: زما په آند اجتهاد داسي منصب نه دئ ،چي تجزيه نه سي قبلولای بلکي کېدای سي ،چي په ځينو مسئلو کي داجتهاد منصب يو عالم ته ورپه برخه سي او په بعضو مسئلو کي دي بيا داجتهاد مقام ورنه کړل سي.

علامه تفتازاني رحمه الله ليکي :

ثم هذه الشرائط انما هي في حق المجتهد المطلق الذي يفتي في جميع الاحكام ، وامام المجتهد في حكم دون حكم فعليه معرفة مايتعلق بذالک الحکم. ([2])

ژباړه : دغه شرائط دهغه چا لپاره دي ،چي مجتهد وي او په ټولو احکامو کي فتوا ورکوي او هغه مجتهد ،چي په يو حکم کي مجتهد وي په بل کي بيا مجتهد نه وي دهغه لپاره فقط په هغه خبرو علم پکار دئ ،چي په اړونده مسائلو پوري تعلق لري.

دپورتنی خبري اړونده مولانا اميرعلي رحمه الله وايي:

قوله وامام المجتهد في حكم . الخ فلابد له من الاطلاع علي اصول مقلده لان استنباطه علي حسبها فالحكم الجديد اجتهاد في حكم والدليل الجديد للحكم المروي تخريج.([3])

ژباړه : هغه کس ،چي په ځينو مسائلو کي مجتهد وي هغه لره پکارده ،چي دهغه چا داستنباط په اصول علم لري ،چي دی يې مقلد دئ ځکه نوموړی کس دخپل امام تر تقليد لاندي استنباط کوي ، که ددغه اصولو مطابق کوم حکم صادرسي دې ته اجتهاد في الحکم وايي او که

---

رحمه الله ، القطب الرابع في حكم المستثمر وهو المجتهد.

[2]: التلويح مع التوضيح ، ج: ٢ ص : ١١٨ ، ط : مصر.

[3]: التوشيح علي التلويح لمولانا امير علي

حکم دامام څخه رانقل سوی وي دلیل یې وروسته ورته ویل سوی وي دې ته تخریج وایي.

علامه ابن الهمام رحمه الله هم داخبره غوره ګڼلې ده ،چې اجتهادتجزیه کېدای سي ،ده په څرګندو الفاظو ویلي دي ،چې کوم څوک ،چې مطلق مجتهد نه وي پرهغه باندي یوازي په مسائلو کي تقلید واجب دئ ،چې دی په هغه مسائلو کي داجتهاد مرتبې ته نه وي رسېدلی.

پورتنی عبارت امیر بادشاه بخاري رحمه الله دشرحي سره مل لیکلی دئ([1])

علامه زین الدین ابن نجیم رحمه الله هم په کټ مټ ډول پورتنۍ خبره کړې ده.([2])

پاته دي نه وي ،چې علامه ابن امیر الحاج رحمه الله د علامه زلمکاني رحمه الله څخه پرېکنده فیصله رانقل کړې ده او لیکي:

داجتهاد کلي شرایط لکه قوي استنباط ، دکلام اسلوب ، ددلایلو رد او قبول او داسي نور بنستیز اصول تجزیه کېدای نه سي بلکي دجزوي اجتهادلپاره یې وجود هم لازمي دئ او دا کېدای سي ،چې په مسئله کي ددلایلو پر پرېکړه دي تجزیه قبوله کړي اوداهم ممکن دئ ،چې په

---

[1]: (غیر المجتهد المطلق یلزمه) عند الجمهور التقلید وان کان مجتهدا في بعض المسائل الفقه او بعض العلوم ... (کالفرائض ) ... (علي القول [illegible]

البخاري رحمه الله ج [illegible]

[illegible] ۳ ،

[illegible] ۳۷.

ځينو مسائلوكي دي ډول شرايط راسي او په ځينومسائلوكي رانه سي.([1])

په هر صورت داصولو دعلماوو دپورتينو څرګندونو په رڼا کي معلوميږي ،چي يومتبحر عالم ته که ديوې مسئلې ډول اړخونه معلوم وي، دډولو اړخونو دلايل يې ورته معلوم وي ، که څه هم په ډولو شرعي احکامو کي داجتهادمرتبې ته نه وي رسېدلی خو په دغه يوه مسئله کي داجتهاد مرتبې ته رسېدلی وي ، پردغه عالم لازمه ده ،چي دخپل امام دپرېکړي خلاف پرېکړه وکړي او دا ووايي ،چي زما داما م پرېکړه دفلاني مشهور حديث خلاف ده بالاخره دخپل امام قول ترک کړي او په حديث عمل وکړي.

فقيه العصر حضرت مولانا رشيد احمد ګنګوهي رحمه الله داسي ليکي:

غرض دادئ ،چي که ددې امر ثبوت وسي ،چي دامام قول دقرآن يا حديث څخه خلاف دئ نو دامام قول پرېښودل په آيت يا حديث باندي عمل کول خو لازمي کار دئ مګر پوښتنه داده ،چي داڅېړنه به څنګه عوام خلک وکړي (يعني داچي عوام خلک دا کار نه سي کولای دادمتبحر في المذهب عالم کار دئ[2])

[1]: فما كان من الشروط كليا كقوة الاستنباط ومعرفة مجاري الكلام وما يقبل من الادلة وما يرد ونحوه فلا بد من استجماعه بالنسبة الي كل دليل ومدلول فلاتتجزء تلک الاهلية وماکان خاصا بمسئلة او باب فاذا استجمعه الانسان کان فرضه في ذالک الجزء الاجتهاد . التقرير والتحرير لابن الامير الحاج ، ج [redacted] ۲۹۴.

[2]: سبيل الرشاد ، دمولانا ګنګوهي رحمه الله [redacted] ، ط : ډهلی ، سنه : ۱۳۵۲ [redacted]

دپورتنۍ مسئلې بنه تحقيق مولانااشرف علي تهانوي رحمه الله کړی دئ مونږ په دې ځای کې دده مبارک اړونده عبارت ټکي په ټکي رانقلوو که څه هم عبارت اوږد سي پروا يې نه کوو ځکه دده عبارت دموضوع اصلي مغزدئ ،حضرت مولانا اشرف علي تهانوي رحمه الله فرمايي:

که کوم عالم ،چې ذکي الفهم، وسيع النظر او دقيق نظر لرونکی وي او ورته څرګنده سوه او يا عام سړي ته ديوه تقوا لرونکي عالم دڅېړني څخه دزړه له صدقه څرګنده سوه ،چې دوهم لوري راجح دئ په دې ځای کې دي وکتل سي ،چې مرجوح لوری هم کوم شرعي دليل لري او که يا؟ که يې دليل درلودئ په دې صورت کې که ددې وېره وه ،چې په خلکو کې به فتنه ، شر او فساد منځته راسي نو دڅغورلو په موخه دي بيا هم په مرجوح قول باندي عمل وکړي او دليل يې لاندي حديث دئ:

حضرت عايشة رضي الله عنها فرمايي ،چې رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: تاته نه ده معلومه ،چې ستا قوم قريشو مکه مکرمه پر هغه بنياد نه ده جوړه کړې کوم ،چې ابراهيم عليه السلام جوړه کړې وه؟ عايشة رضي الله عنها وايي : ما ورته وويل: اې دا الله جل جلاله رسوله صلی الله عليه وسلم! تاسو يې بېرته پر هغه طريقه جوړه کړئ کومه ،چې دابراهيم عليه السلام طريقه وه؟ رسول الله صلی الله عليه وسلم په جواب کې ورته

جوړېدل پر ابراهيمي طريقه باندي راجح جانب دئ او نه جوړېدل يې مرجوح جانب دئ رسول الله صلی الله عليه وسلم دفتنې دويري څخه مرجوح جانب

غوره کړ، او په همدې مرجوح جانب يې عمل وکړ او راجح جانب يې پرېښودئ.

همدا دحضرت عبدالله بن مسعود ﷺ څخه روايت سوی دئ ،چي ده مبارک يو وخت په سفر کي څلور رکعته لمونځ ادا کړ، چاپوښتنه څني وکړه ،چي تاسو خو پر حضرت عثمان ﷺ باندي له دې امله نيوکه کول ،چي هغه به په سفر کي څلور رکعته لمونځ اداکاوه او اوس تا خپله په سفر کي څلور رکعته لمونځ ادا کړ، دا ولې؟ ده مبارک په جواب کي وويل ،چي دا کار مي ځکه وکړ، ،چي دشر څخه وېرېدلم نو په دې وجهه ،چي شر او فتنه رامنځته نه سي نو ځکه مي څلور رکعته لمونځ ادا کړ.

په پورته روايت کي که وکتل سي معلومه خبره ده ،چي دعبدالله بن مسعود ﷺ په آند په سفر کي څلور رکعته لمونځ کول مرجوح قول دئ اودوه رکعته لمونځ کول راجح قول دئ ده مبارک له دې امله ،چي فتنه رامنځته نه سي اوشر پېښ نه سي په مرجوح قول يې عمل وکړ او راجح قول يې پرېښودئ.

په هرصورت دپورته روايتونو څخه معلومېږي ،چي که دشر او دفتنې دپېښېدو وېره وه نو په مرجوح قول باندي عمل کول هم جايز دئ بلکي

صحيح حديث ددليل په توګه موجود و په داسي حالت کي دشک پرته په صحيح حديث باندي عمل کېږي او تقليد په دغه وخت کي بېخي جايز نه دئ ځکه اصل دين قرآن او حديث دئ ، دتقليد اصلي مقصد هم

سره عمل راسي ،په داسي حالت کي ،چي دراجح قول لپاره قوي ، صریح او صحیح حدیث موجود وي ، دمرجوح قول لپاره هیڅ دلیل موجود نه وي بیا هم په مرجوح قول باندي عمل کول او تقلید په وجه ټینګ پر درېدل دهغه تقلید بلل کېږي ،چي په قرآن حدیث او اودعلماوو په ویناووکي یې بدي بیان سوې ده ، پاته دي نه وي ،چي یوه خبره دیادولو وړه ده هغه داچي په داسي مسئله کي ،چي تقلید پرېښودل سي دخپل امام په وړاندي ګستاخي ، بې ادبي او یا په زړه کي بدګماني ،چي زماامام دحدیث څخه مخالفت کړی دئ جایز کار نه دئ ځکه کېدای سي ،چي دا حدیث ده ته رسېدلی نه وي ، یا په ضعیف سند سره ورته رسېدلی وي او یا ده په کومه شرعي قرینه ماول کړی وي له همدې امله دی معذور بلل کېږي ، بې ادبي ورسره کول او یا بدي خبري ورته کول جایز کار نه دئ ، داخبره هم باید یاده سي ،چي دامام په علمي کمال کي نقص پیدا کول هم بې ادبي ده ځکه داسي پېښ سوي دي ،چي لوړو او مخورو اصحبانو ته تر یو وخته پوري احادیث نه وه رسېدلي ، ددوی ددغه حدیثونو نه رسېدل ددوی علمي کمال کوم تاوان نه دئ رسولی او نه چا ددوی پر علمي کمال باندي دنقص خبره کړې ده سره ددې ،چي ددوی علمي کمال منل سوی و.

همدا ډول هغه مقلد ته بد رد ویل جایز نه دي ،چي دخپل امام پر خبره کلک ولاړ وي ، کلک مقلد وي او دده ګومان داوي ،چي دده دامام خبره دحدیث څخه مخالفه نه ده او دده سره هم دومره علم نه وي ،چي دحدیث او دخپل امام دقول ترمنځ دي توپیر وکړي ، په پوره تفصیل دي یې پوه سي ، دغه مقلد دحدیث صحت ته هم قایل وي مګر دده پر خپل امام باندي نېک ګومان وي ،چي زما امام دشریعت حکم دقرآن او حدیث سره برابر کړی دئ زه دخپل امام دقول پوره اطاعت کوم، داسي

مقلد ته بدرد ويل جايز نه دئ ځکه دی هم په شرعي دليل باندي متمسک دئ او دايې هوډ دئ ،چي دشريعت اتباع وکړي.
همدا ډول هغه چا ته هم بدرد ويل جايز نه دي ،چي ديوه قوي حديث په وجه يې دخپل امام تقليد په يوه خاصه مسئله کي پرې ايښی وي ځکه داسي اختلاف داسلافو علماوو څخه را روان دئ ددغه اختلاف اړونده علماوو ويلي دي :
خپل مذهب ظناً صواب ګڼل او محتمل خطاګڼل، بل مذهب ظناًخطا ګڼل او محتمل صواب ګڼل .
يعني داچي په غالب ګومان باندي خپل مذهب حق ګڼل اوپه لږ شک او احتمال سره خطا ګڼل ، بل مذهب په غالب ګومان سره خطا ګڼل او په لږ شک او احتمال سره حق ګڼل.
دپورته خبري څخه هغه نيو که هم دفعه سوه ،چي ټول مذهبونه حق دي نو بيا ولي پر يوه مذهب باندي عمل وکړل سي؟
لنډه داچي کله داخبره ثابته سوه ،چي بل هم دصواب احتمال لري نو دچا تضليل ، تفسيق کول او يا دبدعتي او وهابي لقب ورکول جايز نه دي ، همدا ډول دهغو سره حسد او عناد جايز نه دئ ، دهغو غيبت کول ، طعن او لعن پر ويل هم جايز نه دي.
دايوه خبره لازمي ده هغه داچي که څوک په عقايدو کي مخالفت وکړي او يا په اجتماعي اسلامي شيانو کي مخالفت وکړي او يا سلف صالحينو ته بد رد ووايي داسي کس داهل السنت والجماعت له ډلي څخه وتلی دئ ځکه اهل السنت والجماعت هغه کسان دي،چي په



سنت والجماعت څخه وتلی دئ او دبدعتيانو په ډله کي داخل دئ همدا

ډول هغه څوک هم ډېر بد دئ ،چي په تقليد کي زياتی کوي ، دقران او حديث په مقابل کي تقليد غوره کوي قرآن او حديث پرېږدي ، ددغه دواړه ډلو څخه په کلکه بايد ځانونه وساتل سي او ددوی سره دمناظرې ، خبرو او استدلال څخه هم بايد ځانونه وساتل سي.(1)

حقيقت دادئ ،چي مولانا تهانوي رحمه الله دالله جل جلاله په مرسته داسي داعتدال لاره څېړلې او بيان کړې ده ،چي که دزړه له کومي عمل په وکړل سي دمسلمانانو ډېري خپل منځی شخړي او جنجالونه به له منځه ولاړ سي.

دپورته شرطونو په شتون کي متبحر في مذهب عالم کولای سي ،چي په يوه مسئله کي ،چي قوي صريح او صحيح حديث دليل ولري دخپل امام څخه مخالفت وکړي ، سره ددې ،چي دغه عالم په دغه مسئله کي دخپل امام څخه مخالف سو خو بيا هم په ټوليزه توګه ورته مقلد عالم ويل کېږي، لکه ،چي ډېرو حنفي علماوو په ډېرو مسئلو کي دامام ابو حنيفة رحمه الله قول پرې ايښی دنورو علماوو پر قول يې فتوا کړې ده دمثال په ډول امام ابو حنيفة رحمه الله فرمايي: دانګورو پرته که دنورو شيانو دشرابو څخه دومره قدر وڅيښل سي ،چي محض قوت په حاصل سي جايز دئ ، دامام ابو حنيفة رحمه الله ددغه قول څخه فقهاء کرام مخالف دي دخپل امام قول يې پرې ايښی دئ دنورو مذهبونو په رڼاکي يې

رحمه الله

رحمه الله تاليف ، ص: ۴۲

تـ

ډول دامام ابو حنيفة رحمه الله پر مذهب باندي زراعت (بزګري) جايز کار نه دئ ، مګر دده مبارک ددې قول څخه احناف علماء اوښتي دي او پرېکړه يې کړې ده ،چي په بزګري کي د حاصل متناسب (ټاکلې برخه) اخيستل روا کار دئ.

دادوه مثالونه ،چي ذکر سوه دا داسي مسئلې دي ،چي دټولو متاخرينو علماوو پر اتفاق دئ که نه نو په انفرادي ډول داسي ډېري مسئلې سته ،چي فقهاوو ديوه صحيح حديث په وجه خپل مذهب پرې ايښى وي او په حديث يې عمل کړى وي خو داخبره ډېره لازمي ده ،چي داډېر نازک کار دئ هر چا ته دا پکار نه ده ،چي ځان ته دي متبحر عالم وو ايي او ځان دي ددې منصب څښتن او اهل وګڼي ځکه دا کار هر څوک نه سي کولاى هيچا ته جايزه نه ده ،چي دپورته شرايطو دپروا او رعايت پرته په شرعي احکامو کي لاس وهنه او تصرف وکړي.

# مجتهد في المذهب

## دريمه درجه:

دتقليد دريمي درجې ته مجتهد في المذهب تقليد ويل کېږي مجتهد في المذهب هغه چا ته ويل کېږي ،چي داستدلال او استنباط په

داصحابانو رضي الله عنهم داثارو څخه دمسائلو استنباط وکړي ، له همدې امله داسي عالم دخپل امام سره په ډېرو فروعي مسائلو کي اختلاف لري خو په ټوليزه توګه داط

په حنفي فقه کي امام ابويوسف رحمه الله او امام محمد رحمه الله ، په شافعي فقه کي امام مزني رحمه الله او امام ابوثور رحمه الله ، په مالکي فقه کي امام سخنون رحمه الله او امام ابوالقاسم رحمه الله ، په حنبلي فقه کي ابراهيم الحربي رحمه الله او امام ابوبکر الاثرم رحمه الله.

ابن العابدين رحمه الله دپورتنيو علماوو دپېژندګلوی په اړه داسي ليکي:

الثانية طبقة المجتهدين في المذهب کابي يوسف رحمه الله ومحمد رحمه الله وسائر اصحاب ابي حنيفة رحمه الله القادرين علي استخراج الاحکام عن الادلة المذکورة على حسب القواعد التي قررها استاذهم ، فانهم وان خالفواه في بعض احکام الفروع ولکنهم يقلدونه في قواعد الاصول.([1])

ژباړه : دوهمه طبقه مجتهدين في المذهب دي لکه ابويوسف رحمه الله ، امام امحمد رحمه الله او دامام ابوحنيفة رحمه الله نور اصحاب ،چي داحکامو پر استنباط باندي ديادو دلايلو په رڼا کي توانايي لري دهغو اصولو پر بنسټ ،چي استاذانو ورته ټاکلي دي ، دغه علماء که څه هم په فروعي مسائلو کي دخپلو امامانو څخه مخالف دي مګر دوی په اصولو کي دخپلو امامانو تقليد کوي او مقلدين ورته ويل کېږي.

همدا لامل دئ ،چي مجتهد في المذهب ته داصولو په لحاظ مقلد ويل کېږي او دفروعو په لحاظ مجتهد ورته ويل کېږي. همدا وجه ده ،چي دامام ابويوسف رحمه الله او امام محمد رحمه الله سره ددې ،چي حنفيان دي بيا هم دامام ابوحنيفة رحمه الله [redacted]

---

[redacted] ١ [redacted]
هـ [redacted]

# دمجتهد مطلق تقليد

## څلورمه درجه:

دا دتقليد وروستۍ اواخره درجه ده ، مجتهد مطلق هغه کس ته ويل کېږي ،چي په ده کي داجتهاد ټول شرطونه موجود وي ، نوموړی عالم دخپل علم او فهم په مټ کولای سي ،چي داستدلال اصول دقرآن اوحديث څخه وضع کړي ، تر دغه اصولو لاندي کولای سي ،چي شرعي احکام دقرآن او حديث څخه استنباط کړي لکه امام ابوحنيفةرحمه الله ، امام شافعيرحمه الله ، امام مالکرحمه الله ،امام احمد بن حنبلرحمه الله او داسي نور وتلی علماء ، دغه علماء که څه هم په فروعي او اصولي مسائلو کي مجتهدين بلل کېږي مګر بيا هم دوی ته يو ډول مقلدين ويل کېږي ځکه کومه مسئله ، چي په څرګند ډول په قرآن او حديث کي واضح سوې نه وي نو د غه علماء ددې پرځای ،چي دخپلي رايي او قياس څخه کار واخلي او فيصله وکړي هڅه کوي ،چي دمبارکو اصحابانو رضي الله عنهم څخه داسي قول يا فعل پيدا کړي ،چي داړونده مسئلې حل پکښي وي ، که دوی ته ديادي مسئلې دحل لپاره داصحابانو مبارکانو قول يا فعل په لاس ورغلی نو دوی دخپلي رايي او قياس پرځای ددغه اصحابانو رضي الله عنهم

١: لومړی مثال هغه مکتوب دئ ،چي حضرت عمر رضي الله عنه دقاضي شريح په نوم ليکلی او استولی و، امام شعبيرحمه الله

عَنِ الشَّعْبِىِّ عَنْ شُرَيْحٍ : أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ كَتَبَ إِلَيْهِ : إِنْ جَاءَكَ شَىْءٌ فِى كِتَابِ اللَّهِ فَاقْضِ بِهِ وَلاَ تَلْتَفِتْكَ عَنْهُ الرِّجَالُ ، فَإِنْ جَاءَكَ مَا لَيْسَ فِى كِتَابِ اللَّهِ فَانْظُرْ سُنَّةَ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- فَاقْضِ بِهَا ، فَإِنْ جَاءَكَ مَا لَيْسَ فِى كِتَابِ اللَّهِ وَلَمْ يَكُنْ فِيهِ سُنَّةٌ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- فَانْظُرْ مَا اجْتَمَعَ عَلَيْهِ النَّاسُ فَخُذْ بِهِ ، فَإِنْ جَاءَكَ مَا لَيْسَ فِى كِتَابِ اللَّهِ وَلَمْ يَكُنْ فِى سُنَّةِ رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- وَلَمْ يَتَكَلَّمْ فِيهِ أَحَدٌ قَبْلَكَ فَاخْتَرْ أَىَّ الأَمْرَيْنِ شِئْتَ : إِنْ شِئْتَ أَنْ تَجْتَهِدَ رَأْيَكَ ثُمَّ تَقَدَّمَ فَتَقَدَّمْ ، وَإِنْ شِئْتَ أَنْ تَأَخَّرَ فَتَأَخَّرْ ، وَلاَ أَرَى التَّأَخُّرَ إِلاَّ خَيْراً لَكَ.([1])

ژباړه : حضرت شريح رحمه الله فرمايي: ماته عمر رضي الله عنه يو ليک راوليږئ په ليک کي يې راته ليکلي وه : که ،چيري تاته کومه مسئله راسي نو که يې حل په قرآن کي و نو دقرآن په رڼا کي يې پريکړه وکړه خو دخلکو شخصي رايي تا دقرآن دفيصلې څخه ونه باسي او که په قرآن کي دغه مسئله حل نه وه نو بيا درسول الله صلى الله عليه وسلم سنتو ته رجوع وکړه او دسنت رسول الله صلى الله عليه وسلم په رڼا کي پريکړه وکړه ، که داسي مسئله درته راغله ،چي په قرآن او حديث کي يې حل نه و نو بيا يې پر داسي ډول باندي حل کړه ،چي مخکني خلک پر متفق سوي وي او عمل په وکړه، که داسي مسئله درته راغله ،چي په قرآن او حديث کي نه وه او نه درتا وړاندي کوم چا په دې اړه پريکړه کړې وه نو بيا يوه ددې دوو خبرو څخه ياد

وساته او زه ستا لپاره دا وروستۍ خبره خوښوم.

[1]: سنن الدارمي ، ج : ١ ، ص : ٥٥ ، ح : ١٦٩ ، باب الفتيا وما فيه من الشدة ، ط :

تاسو وګورئ سره ددې ،چې حضرت شريح رحمه الله مطلق مجتهد و مګر بيا هم حضرت عمر رضي الله عنه هغه وخت دخپل نظر اجازه ورکړه ،چې داسلافو څخه دا ړونده مسئلې په اړه څه شي نه وي نقل سوی.

په پورته ډول دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه څخه هم روايت مخکي دمطلق تقليد په مثالونو کي تېر سوی دئ.

۲: همدا ډول په سنن دارمي کي عبيدالله بن ابي يزيد رحمه الله فرمايي:

عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِى يَزِيدَ قَالَ : كَانَ ابْنُ عَبَّاسٍ إِذَا سُئِلَ عَنِ الأَمْرِ فَكَانَ فِى الْقُرْآنِ أَخْبَرَ بِهِ ، وَإِنْ لَمْ يَكُنْ فِى الْقُرْآنِ وَكَانَ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– أَخْبَرَ بِهِ ، فَإِنْ لَمْ يَكُنْ فَعَنْ أَبِى بَكْرٍ وَعُمَرَ ، فَإِنْ لَمْ يَكُنْ قَالَ فِيهِ بِرَأْيِهِ. ([1])

ژباړه : دعبدالله بن عباس رضي الله عنه څخه ،چې به کله ديوې مسئلې پوښتنه وسوه نو که به دهغې مسئلې حل په قرآنکريم کي و نو ده به لومړی دقرآنکريم په رڼا کي دهغې مسئلې حل کاوه که به په قرآن کي نه و نو بيا به يې درسول الله صلى الله عليه وسلم دسنتو مطابق هغه مسئله حل کول ، که به په سنتو کي دنبي صلى الله عليه وسلم هم نه وه نو بيا يې کتل که به دابوبکر رضي الله عنه يا عمر رضي الله عنه څخه کوم قول يا فعل ثابت و دهغه په رڼا کي به يې حل کول ، که به ددوی مبارکانو څخه څه شي ثابت نه و نو بيا به يې په خپله رايه اجتهاد

حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنه مطلق مجتهد و مګر ده لومړيتوب دابوبکر رضي الله عنه [illegible] رضي الله عنه [illegible]

کول.

[1]: سنن الدارمي ، ج : ١ ، ص : ٥٥ ، ح : ١٦٨ ، باب الفتيا وما فيه من الشدة ، ط : مدينة المنورة

۳ : همدا ډول په سنن دارمي کي روايت دي:

.... عَنِ الشَّعْبِيِّ قَالَ : جَاءَهُ رَجُلٌ يَسْأَلُهُ عَنْ شَيْءٍ ، فَقَالَ : كَانَ ابْنُ مَسْعُودٍ يَقُولُ فِيهِ كَذَا وَكَذَا. قَالَ : أَخْبِرْنِى أَنْتَ بِرَأْيِكَ. فَقَالَ : أَلاَ تَعْجَبُونَ مِنْ هَذَا؟ أَخْبَرْتُهُ عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ وَيَسْأَلُنِى عَنْ رَأْيِى ، وَدِينِى عِنْدِى آثَرُ مِنْ ذَلِكَ ، وَاللَّهِ لأَنْ أَتَغَنَّى أُغْنِيَّةً أَحَبُّ إِلَيَّ مِنْ أَنْ أُخْبِرَكَ بِرَأْيِى ([1])

ژباړه : حضرت شعبي رحمه الله ته يو کس راغلی ديوې مسئلې په اړه يې پوښتنه ځني وکړه ،چي شعبي رحمه الله جواب ورکړ او ورته وې ويل ،چي دابن مسعود رضي الله عنه نظر په دې اړه داسي دئ ، هغه سړي ورته وويل : په دې اړه ستا څه نظر دئ؟ ده په جواب کي ورته وويل: تاسو ولي ودې کس ته تعجب نه کوئ ؟زه ورته دابن مسعود رضي الله عنه نظر وايم دی راته وايي په دې مسئله کي ستا څه نظر دئ؟ په الله جل جلاله قسم کوم ،چي که ته ماته سندري ووايي ماته ددغه سندري اورېدل تردې ښه دي ،چي زه خپل نظر ددغه مسئلې په اړه ووايم.

شعبي رحمه الله هم مطلق مجتهد و دامام ابوحنيفة رحمه الله استاد و مګر ده لومړيتوب دابن مسعود رضي الله عنه قول ته ورکاوه ، دهغه تقليد ته يې تر خپل نظر زيات اهميت ورکاوه.

رحمه الله په کتاب الاعتصام بالکتاب والسنة کي ددې آيت په تفسير کي ،چي الله جل جلاله فرمايي:( واجعلنا للمتقين امام رحمه الله

[1]: سنن الدارمي ، ج : ۱ ، ص : ۴۵ ، ح :۱۰۹، باب تورع عن الجواب فيما ليس فيه کتاب ولاسنة ، ط : مدينة المنورة

ژباړه : اې الله جل جلاله! موږ داسي امامان جوړ کړې ،چي موږ په هغه چا پسي اقتدا وکړو ،چي تر موږ مخکي تېر سوي دي او په موږ پسي هغه کسان اقتدا وکړي ،چي تر موږ وروسته راځي.

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمايي:

دمجاهد رحمه الله پورتنی قول ابن جرير رحمه الله ، فاريابي رحمه الله او نورو علماوو په صحيح سند سره روايت کړی دئ.

وربسي ابن حجر رحمه الله دپورتنی آيت دتفسير اړونده نور آثار هم رانقل کړي دي او بيا يې دابن ابي حاتم رحمه الله په حواله دسدي رحمه الله دا قول هم رانقل کړی دئ ،چي فرمايي:

ليس المراد ان نؤم الناس وانما ارادوا اجعلنا ائمة لهم في الحلال والحرام يقتدون بنا فيه.

ژباړه : ددې مراد دا نه دئ ،چي موږ دخلکو امامت وکړو بلکي مراد يې دادئ ،چي اې الله جل جلاله! موږ په حلال او حرام کي امامان جوړ کړي ،چي دوی په موږ پسي اقتدا وکړي.

ابن ابي حاتم رحمه الله دجعفر بن محمد رحمه الله دا قول هم رانقل کړی دئ ،چي فرمايي:

معناه اجعلني رضا فاذا قلت صدقواني وقبلوا مني.(1)

ذکر استطرادا وسو مګر اصلي مطلب دا و ،چي حضرت مجاهد رحمه الله

[1]: فتح الباري للحافظ ابن جرير رحمه الله ...

خوښه وګڼل ،چي دی په پخوانیو خلکو پسي اقتداء او تقلید وکړي، دوروسته خلکو لپاره يې هم دا خوښه کړه ،چي هغوی دي په مخکنیو امامانو پسي اقتدا وکړي سره ددې ،چي امام مجاهدرحمه الله مجتهد مطلق دئ او دعامو علماوو او عامو خلکو لپاره دتقليد يو مثال دئ.

# پر تقلید باندي شکونه او نیوکي

په تېرو پاڼو کي ،چي په کوم ډول دتقليد حقيقت څرګند سوی دئ ، دقرآن او حديث څخه ،چي کوم مثالونه راوړل سوي دي ، دتقليد اړونده ،چي دمقلد کومي درجاتي او احکام بيان سوي دي که هغه په پوره ډول په ذهن کي ونيول سي نو کوم شبهات او اعتراضونه ،چي پر تقلید باندي واردېږي هغه خپل دفعه کېږي او له منځه ځي خو بيا هم مناسبه داده ،چي ځيني هغه اعتراضونه په خاصه توګه راوړل سي ،چي په زړه کي زيات را وړاندي کېږي يا په عمومي توګه دمخالفو حضراتو پر ژبو باندي زيات جاري وي او هر وخت يې په شد او مد سره بيانوي.

## په قرآنكريم كي دپلرونو او نيكه ګانو تقليد

۱: لومړی اعتراض پر تقلید باندي داکېږي ،چي قرآنكريم دتقليد بدي په لاندي آيت کي بيان کړې ده:

وَإِذَا قِيلَ لَهُمُ اتَّبِعُوا مَا أَنزَلَ اللّهُ قَالُواْ بَلْ نَتَّبِعُ مَا أَلْفَيْنَا عَلَيْهِ آبَاءنَا أَوَلَوْ كَانَ آبَاؤُهُمْ لاَ يَعْقِلُونَ شَيْئاً وَلاَ يَهْتَدُونَ. (1)

1: سورة بقرة ، اية ۱۷۰

ژباړه : کله ،چې دوی ته وویل سي : دهغه احکامو پیروي وکړئ ،چې الله ﷻ نازل کړي دي ، دوی وایي موږ دهغه څه پیروي کوو ،چې زموږ دخپلو پلرونو اونیکونو تګ لاره وه ، که څه هم ددوی پلرونه په هیڅ شي نه پوهیږي او نه پر هدایت وي.

مخکې ،چې کومي څېړني دتقلید په اړه وسوې که هغو ته دوکتل سي او دانصاف په نظر غور باندي وسي په ښکاره توګه داشبه لیري کېږي ،چې (معاذالله) دامامانو تقلید کونکي هم تر دې آیت لاندي دي.

دلاسپیناوي په موخه باید ووایو ،چې لومړی خو کوم آیت ،چې ذکر سوی دئ او په آیت کي ،چې کوم څوک ښودل سوي دي هغه مشرکان دي یعني داچې په دغه آیت کي بنسټیزي عقیدې ښودل سوي دي لکه توحید ، رسالت ، دآخرت بیان او داسي نور، کله ،چې به مشرکانو ته دتوحید دعوت ورکړل سو دهغه احکامو دپلي کېدو دعوت به ورکړل سو کوم ،چې دالله ﷻ دلوري څخه نازل کړل سوي وه دوی به خپل پلرونه او نیکونه بهانه کړل ،چې زموږ دغه دشرک عقیده موږ ته دپلرونو او نیکونه څخه په میراث پاته ده ، موږ دهمدغه عقیدې پیروي کوو ،چې موږ ته راپاته ده ، دتوحید عقیده موږ نه سو منلای حاصل

ﷻ

منو. زموږ په آند هم داخبره ده ،چې په اسلامي دین کي په بنیادي عقیدو کي تقلید حرام دئ ، زموږ دفقه شریفي ټولو علماوو دا مسئله لیکلې ده ،چې په عقایدو او ضروري شیانو کي تقلید نه سي راتلای ځکه دا شیان نه داجتهاد محل کېدای سي او نه دتقلید ، دمثال په ډول امیر بادشاه بخاري رحمه الله دتحریر اصول په شرح کي لیکي:

(فيما يحل الاستفتاء فيه)الاحكام الظنية لاالعقلية المتعلقة بالاعتقاد فان المطلوب فيها العلم (علي) المذهب (الصحيح) فلايجوز التقليد فيها بل يجب تحصيلها بالنظر الصحيح... (كوجود ه تعالى).([1])

ژباړه : هغه مسائل ،چي پو ښتنه پکښي كول جايز دي هغه ظني احكام دي ، نه هغه عقلي احكام دي ،چي په عقيده پوري اړه لري ځكه په دغه شيانو كي قطعي علم پكار دئ، همدا صحيح مذهب دئ ،چي په اعتقاد كي تقليد جايز نه دئ ، بلكي په دغه اعتقاداتو كي اختيار او خپلو اكي په صحيح استدلالاتو باندي پكار دئ لكه د الله جَلَّ جَلَالُهُ وجود .

كوم تقليد ،چي په پورته آيت كي ياد سوى دئ او بد تقليد ورته ويل سوى دئ هغه تقليد دئ ،چي زموږ امامانو هم ناجايز كړى دئ او بد يې ورته ويلي دي لكه خطيب بغدادي رَحِمَهُ اللهُ ،چي په اصول عقايد كي دغه تقليد ناجايز بللى دئ او په پورتني آيت باندي يې دليل ويلى دئ.([2])

دوهمه خبره داده ،چي په پورتني آيت كي الله جَلَّ جَلَالُهُ دتقليد بدي بيان كړې ده او ددغه تقليد دبدۍ لپاره يې دوه سببونه ښودلي دي لومړى داچي كافرانو دهغو احكامو څخه انكار كاوه كوم ،چي د الله جَلَّ جَلَالُهُ دلوري څخه نازلېدل ددغه نازل سوو احكامو پر ځاى يې دخپلو پلرونو او نيكه ګانو باطل احكام منل يعني دالهي احكامو څخه منكر وه كفري احكام يې منل ، دوهم سبب الله جَلَّ جَلَالُهُ دا ښودلى دئ ،چي ددغه كافرانو پلرونه او نيكه ګان دعقل او هدايت دواړو څخه خالي وه، موږ ،چي كله تقليد كوو دغه دوه سببونه دواړه مفقود دي ځكه هيڅ يو مقلد داسي نه وايي

---

[1]: تيسير التحرير، لامير بادشاه ال[illegible]ي ج : ۴ ، ص [illegible] ص [illegible] .

[2]: الفقه والمتفقه ، ج : ۲ ، ص : ٦٦.

،چي موږ الهي احکام نه منو ، دالله جل جلاله او رسو ل الله صلی الله علیه وسلم خبره نه منو او پر ځای يې دخپل مشر يا امام خبره منو بلکي هر مقلد دخپل امام خبره دقرآن او حديث دشارح په توګه مني او بيا دهغه تشريح په رڼا کي په قرآن او حديث باندي عمل کوي ، همدا ډول دوهم سبب هم دلته مفقود دئ ځکه کوم کسان ،چي دحق څښتنان دي هغوی بالکل ددې خبري څخه مخ نه اړوي ،چي هغه امامان ،چي تقليد يې کېږي که څه هم هر څومره اختلاف ورسره لري مګر ددغو امامانو عزت او منزلت ته په اهتمام سره قايل دي ، هيڅوک ددوی پر قدر او منزلت باندي سترګي نه پوټوي ،څوک ،چي ددوی تقليد دکافرانو دتقليد سره ايږدي او دوی دکافرانو دګمراهانو پلرونو او نيکونو سره برابروي دا ډېره دظلم او ګناه خبره ده.

## داحبارو او رهبانو تقليد

**۲: ځيني خلک دامامانو پر تقليد باندي لاندي آيت دليل وايي:**

اتَّخَذُواْ أَحْبَارَهُمْ وَرُهْبَانَهُمْ أَرْبَابًا مِّن دُونِ اللّهِ.([1])

ژباړه : دوی خپل علماء او تارک الدنيا زاهدان دالله جل جلاله پرځای خپل خدايان ګڼلي دي.

مجتهد تقليد په دې معنا نه دئ ،چي مجتهد دشرعي قانون بنسټ اېښودونکی دئ بلکي دمجتهد تقليدپه دې معنا دئ ،چي نوموړی مجتهد دشرعي قانون شارح او تفصيل ورکونکی دئ نه دا چي نوموړی

---

[1]: توبة ، اية : ۳۱.

مجتهد دقانون له سره جوړوي ، دداسي مجتهد اتباع په پورته معنا کېږي، مجتهد خپل ځان په ذاتي اعتبار سره واجب الاتباع نه بولي بلکي دقرآن او حديث ،چي ده کوم تشريحات او څرنګوالی کړی دئ خلک دهغو تشريحاتو پيروي کوي ، دغه مجتهد ته دشارع په سترګه نه ګوري.

زما پر پورته تبصره باندي مولانا اسماعيل سلفي يو اعتراضيه مضمون ليکلی دئ نوموړی عالم ليکلی دي ،چي پورته تبصره په کټ مټ ډول هغسي ده لکه برېلويان ،چي وايي: موږ اهل قبور خدايان نه بولو ، نه مزارونه او خانقاوي مستقل بالذات خدای بولو بلکي موږ دلته مجازا خدای ګڼو او يا دنائب عقيده لرو، اويا وايي ،چي موږ په دغه شيانو سره توسل کوو او يا وايي ،چي دغه شيان والله جَلَّ جَلَالُهُ ته زموږ شفاعت کوي او داسي نور خو دا ټوله شيان دشرک لاري خلاصوي ، برېلويان دشرک دلارو دخلاصېدو لپاره ډول ، ډول حيلې جوړوي نو په دې بنياد پورته تبصره همداسي ده.(1)

دپورتني سوال په جواب کي بايد وويل سي ،چي که برېلويانو د (بالذات) او يا (بالواسطه) استعمال غلط ځای کړی وي نو ددې معنا

،چي علامه ابن تيمية رَحِمَهُ اللهُ داسي ځوک ،چي دبرېلويت سايه لاهم باندي سوې نه وه هغه هم دغه اصطلاح ياده کړې ده او وايي:

انما يجب علي الناس طاعة الله ورسوله وهؤلاء اولو الامر الذين امر الله بطاعتهم ... انما تجب طاعتهم تبعا لطاعة الله ورسوله لااستقلالا.([1])

ژباړه : بېشکه دالله جل جلاله او درسول الله ﷺ اطاعت پر خلکو باندي واجب دئ، دعلماوو او حُکامو اطاعت هم الله جل جلاله امر کړی دئ... ددوی اطاعت دالله جل جلاله او درسول الله ﷺ داطاعت تبعه دئ ، ددوی اطاعت مستقل بالذات نه دئ.

علامه ابن تيمية رحمه الله په خپله مستقل بالذات او بالواسطه اطاعت ياد کړی دئ نو دې ته دبريلويانو په څېر فقره ويل کېږي.

علامه ابن تيميه رحمه الله په بل ځای کي فرمايي:

فطاعة الله ورسوله وتحليل ما احله الله ورسوله وتحريم ما حرمه الله ورسوله وايجاب ما اوجبه الله ورسوله واجب علي جميع الثقلين الانس والجن واجب علي كل احد في كل حال سرا وعلانية لكن لما كان من الاحكام مالايعرفه كثير من الناس رجع الناس في ذالک الي من يعلمهم ذالک لانه اعلم بما قال الرسول واعلم بمراده : فائمة المسلمين الذين اتبعوهم وسائل وطرق وادلة بين الناس وبين الرسول يبلغونهم ما قاله ويفهمونهم مراده بحسب اجتهادهم واستطاعتهم ، وقديخص الله هذا العالم من العلم والفهم ما ليس عند الاخر.([2])

ژباړه : دالله جل جلاله او درسول الله ﷺ اطاعت کول ، کوم شيان ،چي الله جل جلاله او رسول الله ﷺ حلال کړي دي هغه حلال بلل ، کوم شيان ،چي الله جل جلاله او رسول الله ﷺ حرام کړي دي هغه حرام بلل او هغه شيان ،چي الله جل جلاله او رسول الله ﷺ واجب بللي دي هغه واجب بلل ـ دغسي کړني پر انسان او پيري دواړو باندي واجب دي په پ[illegible]

---

[1]: فتاوی ابن تيمية رحمه الله [illegible]٢ ، ص [illegible].

[2]: فتاوای ابن تيمية رحمه الله ج : ٢ ، ص: ٢٣٩

مګر یوه خبره سته هغه داچي ځیني داسي احکام سته ،چي ډېر خلک نه په پوهیږي نو هغه چا ته رجوع کوي ،چي هغه په دغو مسائلو باندي پوهیږي ځکه داسي علماء درسول اللهﷺ په ویناو باندي ښه پوهیږي او مراد یې ښه ورته معلوم وي ، دمسلمانانو امامان ،چي دوی یې پیروي کوي په حقیقت کي دوی درسول اللهﷺ او دخلکو ترمنځ دوسیلو حیثیت لري او درهنمود حیثیت لري، دوی هڅه کوي ،چي مسلمانانو ته درسول اللهﷺ لارښووني ورسوي او دخپل توان په اندازه دوی درسول اللهﷺ د لارښوونو په اصلي مراد پوه کړي، کله داسي وي ،چي الله جَلَّ جَلَالُهُ ځینو خلکو ته داسي علم او فهم ورکړی وي ،چي دنورو سره نه وي.

تاسو ښه فکر وکړئ ،چي مقلدین له دې څخه زیات نور څه وایي؟ دکتاب په پیل کي ،چي موږ دتقلید کوم حقیقت بیان کړی دئ هغه یو وېښته هم ددې څخه زیات نه دئ.

حقیقت دادئ ،چي دمستقل بالذات او بالواسطه ترمنځ توپیر کول هغه وخت غلط دئ ،چي یوازي دغه توپیر دیوې بهانې په توګه استعمال کړل سي که نه نو پر بالواسطه باندي باید هغه احکام تطبیق کړل سي

[illegible]

ثرنګوالی وکړئ ،چي امامان بالذات واجب الاطاعة نه دي ، موږ دتقلید لپاره لاندي ټکي لازمي بللي دي:

۱ : ددین په بنسټیزو عقایدو کي تقلید جایز نه دئ.

۲ [illegible]

۳ : دقرآن او حديث ،چي کوم نصوص قطعي الدلالت دي او څه معارض نه لري په هغه کي دهيڅ امام تقليد ته اړتيا نه سته.
۴ : تقليد يوازي ددې لپاره دئ ،چي دقرآن يا حديث دکوم متن څخه څو معناوي اخيستل کېږي نو په دغو معناوو کي ديوې دټاکلو لپاره ددې پرځای ،چي خپل ذهن او فکر په کاروا چول سي ديوه مجتهد او امام نظر ومنل سي، اعتماد پر وسي او عمل باندي وکړل سي.
۵ : دټول مسلمان امت له آنده ټوله مجتهدين دګناه څخه پاک دي او دخطا څخه پاک نه دي ځکه کېدای سي ددوی په اجتهادي کړنو کي دخطا احتمال شتون ولري.
٦ : که کوم متبحر عالم ديوه مجتهد خبره ووينې ،چي دصحيح او صريح حديث څخه خلاف وي ، معارض هم نه ولري نو دشرايطو په نظر کي نيولو سره ،چي بيان يې په پوره ډول مخکي تير سو ـ دغه عالم به دمجتهد خبره پرېږدي او پرده باندي واجب ده ،چي په هغه صحيح حديث باندي عمل وکړي.
که ددغه خبرو سره بياهم تقليد شرک وي او پردې کار باندي دا الزام لګول کېږي ،چي مقلدينو خپل عالمان خدايان ګڼلي دي او دشرک

په يو حيثيت په تقليد اخته کېږي ځکه غير مقلدين ټوله داسي نه دي ،چي دمور دنس څخه عالم پيدا سوی دئ ، نه هرڅوک عالم جوړېدای سي ، که عالم هم سي نو هرځای ده ته دقرآن

غيرمقلدينو ،چي كومي فتاواوي نشر او خپرې كړي دي لومړى خو يې دټولو مسائلو لپاره دلايل نه دي ويلي كه يې ويلي هم وي نو عام خلک ،چيري ددې فيصله كولاى سي ،چي ددوى دغه دلايل صحيح دي او كه صحيح نه دي له همدې امله دعلماوو پر فهم او ذكاوت باندي اعتماد كول همدا دتقليد نوم دئ.

كوم خلک ،چي دغير مقلدينو علماء دي هغه دي په انصاف سره داخبره وكړي ،چي دوى دهري مسئلې دحل لپاره دقرآن او حديث څخه مسئله استنباط كولاى سي ، دوى دومره توانايي لري ،چي دا كار ترسره كړي ، دوى كه ددغه پوښتني په جواب كي پر حقيقت ستركي پټي نه كړي په انصاف جواب ووايي نو ددوى جواب به منفي وي. ښكاره خبره ده ،چي دغه غير مقلدين علماء خپله دقرآن او حديث څخه دمسائلو استنباط نه سي كولاى بلكي دوى هم دپخوانيو علماوو كتابونو ته رجوع كوي خو يوازي دومره توپير لري ،چي دوى دحنفي ، مالكي ، حنبلي او شافعي علماوو پرځاى دابن تيمية ، ابن حزم ، ابن القيم او قاضي شوكاني په څېر علماوو ته مراجعه كوي ، دوى په هره مسئله كي ددغه علماوو څېړني رانقلوي او دمسئلې حل په كوي ځكه دوى

همدا ډول كه دغه غيرمقلدينو علماوته ددې زمنه مساعده ،چي دحديثو ذخيره هرځاى په لاس ورسي نو بيا ددوى سره خپله ځاني پوهه

فقط دومري وايي ،چي فلاني محدث دا حديث ضعيف بللی دئ ، يا پر فلاني راوي باندي فلاني محدث جرح کړې ده کوم کسان ،چي دجرح او تعديل په کتابونو کي معلومات لري هغو ته معلومه ده ،چي هر وخت دجرح او تعديل په کتابونو کي دجرح او تعديل لپاره دلايل موجود نه وي بالاخره ددغه فن د عالمانو پر تحقيق باندي اعتماد کېږي ، کله داسي وي ،چي ديوه صحيح حديث په مقابل کي بل په صحيح سند حديث راغلی وي نو غير مقلدين حضرات دغه دوهم حديث له دې امله ردوي ،چي فلاني محدث دغه حديث ته معلول يا مرجوح ويلي دي اوس نو که دغسي کړني ته تقليد نه ويل کېږي نو څه ورته ويل کېږي؟ که څوک په دغه موضوع کي پردوی باندي لاندنی آيت دليل ووايي:

اتَّخَذُواْ أَحْبَارَهُمْ وَرُهْبَانَهُمْ أَرْبَابًا مِّن دُونِ اللّهِ.([1])

ژباړه : دوی خپل علماء او تارک الدنيا زاهدان دالله جل جلاله پرځای خپل خدايان ګڼلي دي.

غيرمقلدين به پرته له دې څخه ،چي په جواب کي لاندي خبره وکړي بله دليل نه لري:

موږ ،چي داحاديثو په صحت او ضعف کي دجرح او تعديل دعلماوو او

په پوره ډول منعه کړل سي نو ددين او دنيا دواړه کارونه به يو هم پر مخ ولاړ نه سي.

[1]: توبة ، اية : ۳۱.

# دحضرت عدى بن حاتم رضي الله عنه حديث

۳: کوم کسان ،چي دتقليد ځخه مخالف دي هغو لاندي دعدي بن حاتم رضي الله عنه حديث ددليل په توګه زيات بيانوي:

عَنْ عَدِيِّ بْنِ حَاتِمٍ قَالَ أَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَفِي عُنُقِي صَلِيبٌ مِنْ ذَهَبٍ فَقَالَ يَا عَدِيُّ اطْرَحْ عَنْكَ هَذَا الْوَثَنَ وَسَمِعْتُهُ يَقْرَأُ فِي سُورَةِ بَرَاءَةٌ { اتَّخَذُوا أَحْبَارَهُمْ وَرُهْبَانَهُمْ أَرْبَابًا مِنْ دُونِ اللَّهِ } قَالَ أَمَا إِنَّهُمْ لَمْ يَكُونُوا يَعْبُدُونَهُمْ وَلَكِنَّهُمْ كَانُوا إِذَا أَحَلُّوا لَهُمْ شَيْئًا اسْتَحَلُّوهُ وَإِذَا حَرَّمُوا عَلَيْهِمْ شَيْئًا حَرَّمُوهُ.([1])

ژباړه : حضرت عدي بن حاتم رضي الله عنه فرمايي: زه درسول الله صلى الله عليه وسلم حضورته راغلم زما دسرو زرو صليب په غاړه و ، رسول الله صلى الله عليه وسلم راته وفرمايل : اې عدي! دا بت وغورځوه او ما واورېدل ،چي رسول الله صلى الله عليه وسلم لاندي مبارک آيت لوستی:

اتَّخَذُواْ أَحْبَارَهُمْ وَرُهْبَانَهُمْ أَرْبَابًا مِّن دُونِ اللّهِ.([2])

ژباړه : اهل کتابو خپل علماء او تارک الدنيا زاهدان دالله جل جلاله پرځای خپل خدايان ګڼلي دي.

بيا رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: اهل کتابو دخپلو علماوو او راهبانو پرستش نه کاوه بلکي کله ،چي به هغو کوم شي ورته حلال کړ، دوی به هم حلال ورته ويل او کوم شی ،چي به علماوو او راهبانو ورته حرام کړ، دوی به هم حرام ورته ويل.

---

[1]: رواه الترمذي، ح: ۳۰۲۰.

[2]: توبة ، اية : ۳۱.

حقيقت دادئ ،چي ددغه حديث دتقليد داامامانو سره هيڅ اړه نسته دراهبانو او امامانو توپير په پوره ډول سره بيان سو لکه دمخکني اعتراض په جواب کي چي يې سپيناوی وسو خو دلته فقط دومره خبره زياتول لازمي بولم ،چي درسول الله ﷺ مبارک ارشاد دهغه اهل کتابو په اړه دئ ،چي هغو دحلالو او حرامو واک او اختيار خپلو عالمانو او راهبانو ته ورکړی وو ، هغو خپل راهبان او پادريان دخپل قانون شارح نه بلکي بالذات دقانون جوړونکي بلل او دا يې عقيده وه ،چي ددوی پادريان او راهبان ببخي دهر ډول ګناه څخه معصوم اوپاک دي، دوی دحلالو او حرامو پوره اختيار خپلو پادريانو او راهبانو ته ورکړی و، دلاسپيناوي په موخه ويلای سو ،چي انسائيکلوپيډيا برناټانيکا دپاپ دصلاحيتونو په اړه داسي ليکي:

پاپ دعقايدو اړونده دمقتدر اعلي په حيثيت سره دهغه دليل (AUTHORITY) او هغه دسپېڅلتيا (Infallblity) لرونکی دئ ،چي ټولي کليسا ته په مجموعي توګه حاصل دئ ځکه پاپ دقانون جوړونکی (legislstor) ، همدا ډول دقاضي په څېر پور ه اختيارات لري ،چي دکليساوو اجتماعي کونسل ،چي يې لري. دپاپ اقتدار اعلي اوحقوق لازمي دي په دې ډول ،چي دی دهر ډول ګناه څخه معصوم وګڼل سي او داحق ورکړل سي ،چي دټولوعقيده والو دعقايد

(

۱۸ ، ص : ۲۲۲، ۲۲۳. مقاله پاپ ، سنة ۱۹۵۰.

(رومن کاتولیک چرچ) دپاپ په پوره معصومیت قایل دئ ، بنستیز مفهوم یې دادئ ،چي پاپ کله دټولو اهل عقیده لپاره کوم فرمان صادر کړي حتمي ده ،چي پاپ به هیڅ ډول غلطي نه وي کړې. (1)

۱: تاسو وګورئ ،چي عیسایانو خپلو پاپانو ته کوم صلاحیتونه ورکړي وه او اوس یې هم ورکوي ، ایا ددې صلاحیتونو نسبت دمجتهدینو امامانو سره کېدای سي؟ (معاذ الله) هیڅکله نه. انساکلوپیډیابرناټیکا پاپ د پوره حجت په توګه مني او زموږ دامامانو قول هیڅکله په شریعت کي د حجت په توګه نه منل کېږي لکه دکتاب په پیل کي،چي دتقلید په تعریف کي داخبره ښې ثرګنده سوه.

۲ : پاپ په پوره توګه داسي اختیار لري ،چي دټولو اهل عقیده لپاره داسي فرمان صادر کي ،چي په پوره ډول نافذ سي ددې برعکس مقلدین دمجتهدینو تقلید په عقایدو کي ښېخي نه مني.

۳ : پاپ په خپل عیسایي مذهب کي دقانون جوړونکي په توګه منل سوی دئ خو په اسلام کي مجتهد ښېخي ددې حق نه لري ،چي قانون جوړونکی وبلل سي بلکي دشرعي قانون شارح بلل کېږي لکه مخکي ،چي یې پوره تفصیلي بیان تېر سو.

ستَه ،چي پکښې سهو او خطا راسي یعني خپل امامان په یقیني ډول سره معصوم نه ګڼي بلکي ظنا یې معصوم ګڼي .

[1]: انسائیکلوپیډیا برناټانیکا ، ج : ۱۸ ، ص : ۲۲۲، ۲۲۳. مقاله معصومیت. (AUTHORITY

**۵ :** په عيسوي مذهب کي پاپ پوره اختيار لري ،چي دخپلو اهل عقيده په عقايدو کي تغير راولي او بيا اهل عقيده هيڅ حق نه لري ،چي يو وربښته مخالفت وکړي خو ددې څخه برخلاف زموږ په مذهب کي مقلد ته ددې مجال ستة ،چي په خاصو وختونو کي دخاصو شرطونو په وجود کي خپل مذهب پرېږدي لکه مخکي ،چي يې بيان دتقليد ددرجو تر عنوان لاندي وسو.

که ځوک پورته پنځه فرقونه مطالعه کړي نو ثابته به سي ،چي زموږ دتقليد او دعيسايانود تقليد ترمنځ دمځکي او اسمان فرق دئ نو داچي دومره فرق ستة نو بيا څنګه ځوک پر موږ باندي دعدي بن حاتمﷺ حديث تطبيقوي دا بيا جلا خبره ده ،چي ځوک په تقليد کي دومره جامد وي ،چي په هيڅ صورت کي دخپل امام خبره نه پرېږدي قرآن او حديث يې ښځي هېر وي خپل مجتهد قانون جوړونکی بولي اودخپل امام په اړه داسي عقيده لري لکه عيسويان ،چي يې دپاپ په اړه لري په داسي حالت کي نو بيا هيڅ شک نسته ،چي دعدي بن حاتمﷺ حديث پر داسي چا باندي صادق دئ او هغه وعيد دغسي کس لره هم ستة.

## دحضرت عبدالله بن مسعودﷺ سپېڅلي وينا

: غير مقلدين زيات ځايونه دعبدالله بن مسعودﷺ حديث هم ددليل په توګه وړاندي کوي ،چي دی مبارک فرمايي:

ژباړه : خامخا دي يو كس دبل كس په دين كي داسي تقليد نه كوي ،چي هغه ايمان راوړي دی هم ايمان راوړي كه هغه كافر سي نو دی هم كافر سي.

غير مقلدين دتقليد په بدي كي دابن مسعود ﷺ پورته وينا بيانوي ، ددوی څخه زموږ سوال دادئ ،چي دغه تقليد ،چي ابن مسعود ﷺ بيان كړی دئ دې ته څوک جايز تقليد وايي؟ ځكه دغه تقليد په ايمانياتو كي دئ او موږ وړاندي څو ځلي ويلي وه ،چي په ايمانياتو كي تقليد كول جايز نه دئ داچي دشرعي احكامو دمعلومولو لپاره داسلافو تقليد دئ په دې اړه خپله دعبدالله بن مسعود ﷺ لاندي مبارک ارشاد مطالعه كړئ:

وعن ابن مسعود قال : من كان مستنا فليسن بمن قد مات فإن الحي لا تؤمن عليه الفتنة . أولئك أصحاب محمد صلى الله عليه وسلم كانوا أفضل هذه الأمة ... فاعرفوا لهم فضلهم واتبعوهم على آثارهم وتمسكوا بما استطعتم من أخلاقهم وسيرهم فإنهم كانوا على الهدى المستقيم .(1)

ژباړه : كوم كسان ،چي اتباع كول غواړي نو دهغه چا پيروي دي وكړي ،چي وفات سوي دي ځكه پر ژوندو باندي ددې باور نه سي كېدای

دامت غوره خلک دي ... نو تاسو دهغو قدر وپېژنئ ، ددوی دآثارو پيروي وكړئ څو ،چي مو په توان وي ددوی داخلاقو او سيرت

[1]: مشكوة المصابيح ، ج : ١ ، ص

پوره پابندي وکړئ ځکه دوی هغه خلک دي ،چي پر سيده لاره باندي برابر دي.

## دمجتهدينو امامانو ويناوي

**۵:** ځيني غير مقلدين خلک ددليل په توګه دامامانو داخبره هم کوي ،چي مجتهدين امامان خپله داخبره کوي ،چي تاسو تر هغه بريده زموږ خبره مه منئ ځو ،چي دليل مو نه وي معلوم کړی او که زموږ خبره دحديث څخه مخالفه وه پر دېواله يې وغورځوئ نو بيا تاسو ولي ددوی خبره تېنګه نيولې ده او دليل يې نه معلوموئ؟

دپورته خبري اړونده که په انصاف او حقيقت خوښوني سره نظر وسي نو معلومه خبره ده ،چي دامامانو خطاب هغه کسانو ته دئ ،چي هغوی خپله مجتهدين او داجتهاد شرطونه پکښي موجود وي ، هغه کسانو ته يې خطاب نه دئ ،چي هغوی داجتهاد دوړتيا څخه محروم وي لکه شاه ولي الله رحمه الله ،چي په دې اړه ليکي:

انما يتم فيمن له ضرب من الاجتهاد ولو في مسئلة واحدة وفيمن ظهر عليه ظهورا بينا ان النبي صلى الله عليه وسلم امر بكذا ونهي عن كذا وانه ليس بمنسوخ اما بان يتتبع الاحاديث

صلى الله عليه وسلم الا نفاق خفى او حمق جلى.([1])

ژباړه : د امامانو دا ويناوي دهغه چا په اړه صادقيږي ،چي په اجتهاد کولو کي څه وړتيا ولري که څه هم دده دغه وړتيا په يوه مسئله کي وي

او هغه څوک ،چي ده ته درسول الله ﷺ بيان څرګند وي ،چي رسول الله ﷺ دفلاني شي امر کړی دئ او دفلاني شي څخه يې منعه کړې ده او دا ورته څرګنده وي ،چي درسول الله ﷺ دغه حديث منسوخ نه دئ ، يا دټولو حديثو دڅېړني وروسته ، دټولو موافقو اومخالفو دلايلو دمعلوماتو وروسته دې پايلي ته رسېدلی وي ،چي ددې حديث دنسخي لپاره هيڅ دليل نسته، اويا يوه لويه ډله دجيدو علماوو ووينې ،چي عمل په کوي او ورته څرګنده سي ،چي ددې حديث څخه مخالفت که څوک کوي دقياس پرته بل هيڅ دليل نه لري په داسي حال کي،چي درسول الله ﷺ دحديث څخه مخالفت دپټ منافقت او بې عقلۍ پرته بل شی نه سي جوړېدای.

په هر صورت پورتنۍ خبره ښخي څرګنده ده ،چي نور څرنګوالي ته هيڅ اړتيا نه لري . که ،چيري داامامانو پورتنۍ خبره په دې معنا وي ،چي تقليد ښخي جايز نه دئ نو ددوی خپل ژوند دداسي ډېرو پيښنو څخه ډک دئ ،چي خلکو به ددوی څخه پوښتني کولې دوی به دڅه دليل پرته جوابونه ورکول که ،چيري تقليد ددوی په آند جايز نه وای نو دوی به ددې تقليد سبب نه جوړېدای.

ښکاره څرګنديږي ،چي دوی دعامو خلکو لپاره تقليد لازمي بولي دساري په ډول ددوی مبارکانو څو ويناوي رانقلوو :

واذا كان المفتي علي هذه الصفة فعلي العامي تقليده وان كان المفتي اخطا في ذالک ، ولامعتبر بغيره هكذا روي الحسن عن ابي حنيفةؒ وابن رستمؒ عن محمدؒ وبشير بن الوليدؒ عن ابي يوسفؒ.([1])

ژباړه : كه ،چيري په مفتي كي دا صفت موجود وي يعني مجتهد وي نو په عامي سړي باندي يې تقليد لازم دئ ، كه څه هم مفتي خطاوتلی وي، همدا خبره امام حسنؒ دامام ابو حنيفةؒ څخه ، ابن رستمؒ دامام محمدؒ څخه او بشير بن وليدؒ دابويوسفؒ څخه رانقل كړې ده.

۲: دامام ابويوسفؒ داخبره مخكي تېره سوې ده ،چي دی فرمايي:

علي العامي الاقتداء بالفقهاء لعدم الاهتداء في حقه الي معرفة الاحاديث.([2])

۳ : دامام احمد بن حنبل اړونده علامه ابن تيميةؒ داسي نقل كړی دئ:

ويامر العامي بان يستفتي اسحقؒ واباعبيدؒ واباثورؒ وابامصعبؒ وينهي العلماء من اصحابه كابي داودؒ وعثمان بن سعيدؒ وابراهيم الحربيؒ و ابي بكر الاثرمؒ وابي زرعةؒ وابي حاتم الجستانيؒ ومسلمؒ وغيره ان يقلدو احدا من العلماء ويقول عليكم بالاصل ([3])

---

ؒ

[2]: هداية ، ج : ... ٢٢٦ ...

... ۲ ، ص ... .

ژباړه : امام احمد بن حنبل رحمه الله عامو خلکو ته امر کاوه ،چي د اسحق رحمه الله ، اباعبيد رحمه الله ، اباثور رحمه الله او ابامصعب رحمه الله څخه دمسئلو پوښتني وکړي او خپل ملګري يې لکه ابي داود رحمه الله ، عثمان بن سعيد رحمه الله ، ابراهيم الحربي رحمه الله ، ابي بکر الاثرم رحمه الله ، ابي زرعة رحمه الله ، ابي حاتم الجستاني رحمه الله ، مسلم رحمه الله او داسي نور يې دتقليد کولو څخه منعه کول او هغو ته به يې امر کاوه ،چي تاسو ته واجب ده ،چي دقرآن او حديث څخه دمسائلو استنباط وکړئ.

دعلامه ابن تيمية رحمه الله دپورتني عبارت څخه په څرګندو الفاظو معلوميږي ،چي هغه کسان دتقليد څخه منعه کړل سوي دي ،چي دامام احمد بن حنبل رحمه الله خاص شاګردان وه ،جليل القدره محدثين وه او په پوره ډول يې ددې وړتيا درلوده ،چي خپله اجتهاد وکړي ، هغه کسانو ته ،چي داجتهاد وړتيا نه لري نه يوازي ،چي دتقليد اجازه ورته سوې ده بلکي دتقليد کولو امر ورته سوی دئ اودا ورته ويل سوي دي ،چي تاسو شرعي مسئلې ديادو علماوو څخه پوښتئ.

دعامو خلکو لپاره تقليد واجب دئ دا وجوب يې داسي اتفاقي امر دئ ،چي دمعتزله ډلې پرته هيچا مخالفت ورسره نه دئ کړی لکه ،چي رحمه الله ليکي:

بعض معتزلة البغداديين.(1)

1: احکام الاحکام للامدي رحمه الله ج : ۴ ، ص : ۱۹۷ ، قاعده نمبر : ۴ ، رحمه الله ۲

:۲ ، ص : ۱۲۴ ، فن نمر : ۲، قطب نمبر : ۴.

ژباړه : عامي سړی او هغه چاته ،چي داجتهاد وړتيا نه لري که څه هم په ځينو معتبرو علومو کي مهارت لري ـ واجب ده چي دمجتهدينو پيروي وکړي ، په فتوا يې عمل وکړي ، دمحقيقينو اصولينو علماوو همدا مسلک دئ، البته ځينو بغداد والو معزلوو ددې کار منعه کړې ده.

علامه خطيب بغدادي رحمه الله وروسته تر دې ،چي دعامي سړي لپاره يې دتقليد وجوب بيان کړی دئ ليکلي يې دي :

وحکی عن بعض المعتزلة انه قال لايجوز للعامي العمل بقول العالم حتی يعرف علة الحکم ... وهذا غلط لانه لاسبيل للعامي الي الوقوف علي ذالک الا بعد ان يتفقه سنين کثيرة ويخالط الفقهاء المدة الطويلة ويتحقق طرق القياس ويعلم ما يصححه ويفسده ومايجب تقديمه علي غيره من الادلة وفي تکليف العامة بذالک تکليف ما لايطيقونه ولاسبيل لهم اليه.([1])

ژباړه : دځينو معتزلوو څخه داسي حکايت سوی دئ ،چي عامي سړي ته دعالم په قول باندي عمل کول جايز نه دي څو ،چي دهغه حکم علت ورته معلوم سوی نه وي... او دامسلک غلط دئ ځکه عام سړی ښځي ددې لاره نه لري ،چي پر علت باندي علم راولي مګر وروسته تردې ،چي ډېر کلونه علم حاصل کړي او ډېره زمانه دفقهاوو کرامو سره واوسيږي ، دقياس طريقې زده کړي ، همدا ډول صحيح او فاسد قياس

---

1 رحمه الله ، ج : ۲ ، ص : ۶۹ ، ط: دارالافتاء رياض.

يوه خبره ديادوني وړ ده هغه داچي په کوم چا کي ،چي داجتهاد اوصاف موجود وي ايا دغسي کس ته تقليدکول جايزدي که يا؟ په جواب کي بايد وويل سي ،چي په دغه تقليد کي دعلماوو اختلاف دئ لکه علامه خطيب بغدادي رحمه الله ،چي دسفيان ثوري رحمه الله مسلک رانقل کړی دئ ،چي دده له آنده دغه تقليد جايز دئ ، دامام محمد رحمه الله مسلک هم دادئ ،چي يوڅوک تر دده زيات عالم و تقليد کول يې جايز دي خو علامه ابن تيمية رحمه الله بيا دداسي چا لپاره تقليد جايز نه بولي لکه سفيان ثوري رحمه الله ،چي دئ ، همدا ډول دامام شافعي او امام احمدبن حنبل له آنده هم پورته تقليد يعني دمجتهد لپاره تقليد کول ناجايز بولي.(1)

مولانا عبدالحي لکهنوي رحمه الله دشمس لائمة حلواني په ترجمه کي دا قول رانقل کړی دئ ،چي فرمايي:

وقد روي عن الامام الاعظم رحمه الله جواز التقليد المجتهد بمن هو اعلم منه.(2)

ژباړه : دامام اعظم رحمه الله څخه روايت سوی دئ ،چي مجتهد ته دداسي چا تقليد جايز دئ ،چي هغه تر ده زيات عالم وي.

ددغه موضوع پوره تفصيل داصول فقه په کتابونو کي موجود دئ. (3)

حاصل داچي هغه څوک ،چي مجتهد وي دده لپاره تقليدکول جايز دي او که نه دي؟ په دې موضوع کي دعلماوو ترمنځ اختلاف سته او داچي

---

1: فتاوی ابن تيمية رحمه الله ، ج : ۲ ، ص : ۲۴۰.

2: التقليقات السنية علي تراجم الحنفية ، ص: ۹۶ ، دخير التنقيد څخه اخيستل سوی.

3: لکه فواتح الرحمت شرح مسلم الثبوت ، ص : ۱۳۰. المستصفي للغزالي رحمه الله ، ج : ۲ ، ص : ۱۲۱، فن نمبر : ۱ ، قطب نمبر: ۴.

غير مجتهد به تقليد کوي په دې موضوع کې دځينو معتزلوو پرته بل هيڅ اختلاف نه دئ کړی بلکې دعام سړي لپاره تقليد کول ښځي لازم دئ.

## عام سړی به څنګه مجتهد پېژني؟

٦: مونږ دکتاب په پيل کې ويلي وه ،چې ددواړو ډولونو تقليد حقيقت دادئ ،چې څوک خپله مستقيمًا دقرآن او حديث څخه دمسائلو استنباط نه سي کولای نو هغه به دبل عالم ،چې دغه کار کولای سي تقليد به يې کوي او دده پر فهم ، بصيرت او استنباط به اعتماد کوي.
پردې خبره باندې ځينو خلکو دانيوکه کړې ده ،چې څوک ديو چا تقليد کوي يعني يو عام او ناپوه سړی ،چې کله ديو چا تقليد کوي نو دی به څنګه معلوموي ،چې دغه کس يقينًا عالم او مجتهد دئ او ددې وړتيا لري ،چې دقرآن او حديث څخه مستقيمًا دمسئلو استنباط وکړي؟([1])
دپوتني سوال په جواب کې يوازې مونږ دامام غزالي‌رحمه الله لاندې عبارت رانقلوو او لاندنی عبارت دجواب لپاره کافي بولو:
فان قيل... العامي يحكم بالوهم ويغتر بالظواهر وربما يقدم المفضول علي الفاضل فان جاز ان يحكم بغير بصيرة فلينظر في نفس المسئلة وليحكم بما يظنه ، فلمعرفة مراتب الفضل ادلة غامضة ليس دركها من شان العوام؟ وهذا سوال واقع ولكنا نقول : من مرض له طفل وهو ليس بطبيب فسقاه دواء برايه كان متعديا مقصراضامنا ولو راجع طبيبا لم يكن مقصرا ، فان كان في البلد طبيبان فاختلفا في الدواء فخالف الافضل عد مقصرا ويعلم فضل الطبيبين بالتواتر الاخبار وباذعان المفضول له وبتقديمه بامارات تقيده

١

غلبة الظن فكذالک في حق العلماء يعلم الافضل بالتسامع وبالقرآئن عن نفس العلم ، والعامي اهل له فلاينبغي ان يخالف الظن بالتشهي ، فهذا هوالاصح عندنا ولالیق بالمعني الكلي في ضبط الخلق وبلجام التقوي و التكليف. ([1])

ژباړه : كه دانيوكه وسي ،چي عام خلک په اوهامو فيصلې كوي او په ظاهري شيانو باندي دوكه كېږي ، كله داسي هم وي ،چي مفضول تر فاضل غوره ګڼي اوس نو كه دبصيرت پرته دپرېكړي اجازه وركړل سي نو په اصل مسئله كي هم په خپل ظن اوګومان سره فيصله كوي ځكه داصل مسئلې په درک كي ډېرو پېچلو او ګرانو دلايلو ته اړتياسته او دا كار عوام خلک نه سي كولای؟

دپورته سوال په جواب كي بايد ووايو ،چي كه ديو سړي زوی ناجوړه سي ،خپله طبيب نه وي او په خپله رايه او نظر باندي زوی ته دوا وركړي په دغه وخت كي نوموړی كس ته ظالم اوتېری كونكی ويل كېږي ک،چيري يې زوی ته بدي پايلي ورسېدې دی يې مسؤل دئ خو كه دغه سړی خپل ناروغه زوی طبيب ته بوزي بيا پرده باندي هيڅ الزام اونيوكه نسته ، همدا ډول ک،چيري په ښار كي دوه طبيبان وي ، يوطبيب تكړه وي ، بل كمزوری وي او په خپل منځ كي په نظر كي اختلاف ولري په دغه كي كه نوموړي سړي دتكړه طبيب پرځای خپل ناروغه زوی كمزوري طبيب ته وروستی بيا تر نيوكي او الزام لاندي دئ، داچي عام سړي ته به تكړه طبيب څنګه معلومېږي ښكاره خبره ده ،چي دتكړه طبيب تكړه والی په مشهرو او متواتر خبره سره معلومېږي اويا داچي يو طبيب دهغه بل طبيب نظر او خبره ومني دستي

[1]: المستصفي للامام ال[redacted] ١٣٥٦، قبيل الفن الثالث من القطب الرابع.

معلوميږي ،چي هغه طبيب تکړه دئ ،چي خبره يې ومنل سوه ، دطبيب دمعلومېدو لپاره دغه دوې علامې دي ،دې ته ورته نوري هم ډېري علامې لري ،چي يو عام سړی دتکړه طبيب مهارت او پوهه ځانته په معلوموي.

دعلماوو اړونده هم دغسي پرېکړه ده يعني داچي ديوه عالم مهارت او تکړه والی دده دمشهورو او متواترو نښو څخه څرګنديږي ، عام سړي ته لازمه نه ده ،چي دعالم دعلم دي پوره تحقيق وکړي اونه هم کولای سي، همدا لامل دئ ،چي که عام سړي ته يو عالم په خپل ګومان او نظر ښه ورغلی نو ده ته دنفسي خواهشاتو پر بنياد باندي دهغه عالم څخه مخالفت پکار نه دئ همدا طريقه زموږ په آند صحيح ده او دالله جَلَّ جَلَالُهُ دمخلوق دقابو کولو لپاره او ددوی په شرعي احکامو کي دپابندۍ لپاره زموږ په آند دغه ډېره غوره طريقه او مناسب طرز العمل دئ.

# ایا تقلید کول عیب دئ؟

۷: دکتاب په پیل کي موږ ډېر داسي روایتونه رانقل کړي وه ،چي داخبره یې ثابتول ،چي تقلید کول داصحابانو په زمانه کي هم رواج و ، داصحابانو په زمانه کي ،چي به کوم کس اجتهاد نه سوای کولای نو هغه اصحابانو مبارکانو ته به یې رجوع کول ،چي هغوی به ښه فقهاء وه او اجتهاد به یې کولای سوای.

پر پورتنۍ خبره باندي ځیني کسان اعتراض کوي او وایي ،چي تقلید کول اصلاً یو عیب دئ ځکه تقلید هغه وخت کېږي ،چي څوک علم لږ لري که څوک دغه کار یعني تقلید اصحابانو ته ثابتوي په حقیقت کي دا یو عیب دئ ،چي اصحابانو مبارکانو ته یې ثابتوي ، که څوک دا کار کوي ،چي اصحابانو ته تقلید ثابتوي دا کومه تحفه نه ده ،چي دوی یې اصحابانو ته ثابتوي بلکي دایو عیب دئ (معاذلله) اصحابانو ته ، عیب ثابتول پکار نه دي ځکه څرنګه ،چي ټول اصحابانو عادلان وه همدا ډول ټول اصحابان فقهاء هم وه دوی هیڅ کم علمه نه وه او نه یې تقلید ته اړتیا درلوده.(¹)

حقیقت دادئ ،چي پورتنۍ نیوکه یوه جذباتي نیوکه ده ځکه دانسان لپاره مقلد جوړېدل یا تقلید کول څه دعیب خبره نه ده ځکه الله جَلَّ جَلَالُهُ إِنَّ [redacted] أَكْرَمَكُمْ عِندَ اللَّهِ أَتْقَاكُمْ) یعني په تاسو کي عزت والا هغه څوک دئ ،چي دالله جَلَّ جَلَالُهُ څخه زیات ویرېږي ، الله جَلَّ جَلَالُهُ دعزت معیار افقهکم

[redacted] تر [redacted].

او اعلمکم نه دئ ویلی ، دانسان دفضیلت لپاره دا لازمي نه ده ،چي خامخا به دی مجتهد جوړیږي بلکي دانسان دفضیلت لپاره تقوا لازمي ده او تقوا دفضیلت معیار دئ ، علم او فقه لازمي نه دي یعني داچي که په چا کي یو شرط داجتهاد موجود نه سي لا هم یوه زره عیب نه باندي لګیږي ددین په اعتبار سره ، اصحابان ټوله تقوا لرونکي وه بلکي ټوله په پوره تقوا سره فایز وه همدا لامل دئ ،چي دوی ته تر انبیاؤ وروسته غوره مخلوق ویل سوی دئ خو تر کومه بریده ،چي دفقه او علم اړونده خبره ده نو څوک ،چي دا دعوه کوي ،چي اصحابان ټوله دعلم څښتنان وه دا دعوه دقرآن او حدیث څخه ښخي مخالفه ده ځکه الله جل جلاله فرمایي :

فَلَوْلَا نَفَرَ مِن كُلِّ فِرْقَةٍ مِّنْهُمْ طَآئِفَةٌ لِّيَتَفَقَّهُوا۟ فِى ٱلدِّينِ وَلِيُنذِرُوا۟ قَوْمَهُمْ إِذَا رَجَعُوٓا۟ إِلَيْهِمْ لَعَلَّهُمْ يَحْذَرُونَ ﴿١٢٢﴾ (1)

ژباړه : ولي ددوی څخه یوه ډله دهر قوم څخه نه وزي څو په دین کي پوهه لاسته راوړي تر بېرته راتګ وروسته خپل قوم وویروي ښایي خپل قوم به دا الله جل جلاله دنافرمانۍ څخه وساتي.

په پورتني آیت کي الله جل جلاله اصحابانو رضي الله عنهم ته امر کړی دئ ،چي په تاسو کي دي یوه ډله په جهاده بوخته سي او بله ډله په علم او پوهه کي بوخته سي، دالله جل جلاله ددغه وینا څخه په څرګند ډول معلومیږي ،چي په اصحابانو رضي الله عنهم

جل جلاله خپله کړی دئ او

---

1: سورة توبة الاية

کوم شی ،چي دالهي منشاء سره موافق وي هغه ته عیب ویل ستره ګناه ده ، موږ دداسي ګناه څخه په الله جل جلاله سره پناه غواړو.

همدا ډول په سورة نسآء کي لاندني آيت ،چي الله جل جلاله فرمايي:

لَعَلِمَهُ الّذِينَ يَسْتَنبِطُونَهُ مِنْهُمْ. (النساء، آية ٨٣)

دپورتني آيت په تفسير کي مخکي ويل سوي وه ،چي په اصحابانو رضي الله عنهم کي ځينو ته داستنباط اهل ويل سوي وه او هغه اشخاصو ته ،چي اهل يې نه وه هغو ته امر سوی و ،چي دوی ته دي رجوع وکړي يعني داچي الله جل جلاله خپله په قرآنکريم کي ځينو ته داستنباط اهل ويلي دي او ځينو ته يې داستنباط اهل نه دي ويلي.

همدا ډول رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايلي دي:

وعن ابن مسعود قال : قال رسول الله صلى الله عليه وسلم : " نضر الله عبدا سمع مقالتي فحفظها ووعاها وأداها فرب حامل فقه غير فقيه ورب حامل فقه إلى من هو أفقه منه([1])

ژباړه : رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايي: الله جل جلاله دي هغه کس خوشاله کړي ،چي زما يوه خبره واوري ، وې ساتي او ياد يې کړه بيا يې نوروته ورسول ، ډېر وخت داسي وي ،چي څوک ددين خبره زده کړه مګر دی خپله فقيه نه

[illegible] رضي الله عنهم ته خطاب دئ ، په

پورتني حديث کي دوې خبري څرګندي سوي دي لومړی خبره داده ،چي ډېر وخت داسي کېدای سي ،چي څوک حديث ياد کړي مګر خپله فقيه

---

[1]. رواه ابوداود و ابن ماجة ، واحمد و ترمذي ، والدارمي عن زيد بن ثابت.مشکوة، ج ١ ص : ٣٥، کتاب العلم ، الفصل الثالث.

(عالم) نه وي ، دوهمه خبره داده ،چي ځوک که فقيه يعني عالم نه وي نو ددې معنا دانه ده ،چي دغه کس نو عيب لرونکی دئ ځکه رسول الله ﷺ دغسي کس ته خپله دخوشالۍ دعا کړې ده.

حقيقت دادئ ،چي درسول الله ﷺ دمبارک مجلس څخه ډېر خلک برخمن سوي او مستفيد سوي دي خو داخبره هم بايد دياد څخه ونه باسو ،چي درسول الله ﷺ په مجلس کي دابوبکر رضي الله عنه او عمر رضي الله عنه په څېر خلک هم وه ، دحضرت اقرع بن حابس رضي الله عنه او حضرت سلمة بن صخرة رضي الله عنه په څېر پاک نفسه او سپېڅلي انسانان هم وه ، حضرت اقرع بن حابس رضي الله عنه او حضرت سلمة رضي الله عنه که څه هم ددوی په پاکۍ اوسپېڅلتيا کي هيڅ شک نسته ، دومره لوی مقام لري ،چي تردوی وروسته په زرهاوو علماوو او سپېڅلي انسانان دي ترقربان وي مګر دوی په علم او مقام کي دداسي اصحابانو رضي الله عنهم سره په يو شان نه وه لکه حضرت ابوبکر رضي الله عنه او حضرت عمر رضي الله عنه ،که ځوک دوی ته دحضرت ابوبکر رضي الله عنه ،حضرت عمر رضي الله عنه ، حضرت عثمان رضي الله عنه او حضرت علي رضي الله عنه سره برابرمقام ورکوي دا ښکاره ضلالت دئ.

دلاسپيناوي په موخه بايد وويل سي ،چي داصحابانو رضي الله عنهم شمېر يوسل



(1)

دافکر هم په ښکاره ډول غلط دئ اوداصحابانو رضي الله عنهم دمزاج څخه هم ليري دئ ،چي ګويا داصحابانو رضي الله عنهم لپاره يودبله پوښتنه کول عيب و ،

---

1: اعلام الموقعين ، ج : ٩

بلكي اصحابانو ﷺ به يو دبله پوښتني سره كولې لكه مخكي ،چي يې ډېر مثالونه تېر سول ، هم هلته دي دغه مثالونه وكتل سي.
په اصحابانو ﷺ كي دا الله جل جلاله څخه وېره دومره زياته وه ،چي كله به په يوه مسئله كي شكمن سوه نو هغه مسئله يې دهر چا څخه پوښتله په دې پوښتنه كي يې هيڅ دريغ نه كاوه آن تردې ،چي ځينو اصحابانو ﷺ دتابعينو څخه هم علم زده كاوه دمثال په ډول علقمة بن قيس نخعي رحمة الله عليه يو تابعي دئ دابن مسعود ﷺ شاګرد دئ مګر داسي تابعي دئ ،چي ډېرو اصحابانو ﷺ دمسئلو په زده كړه كي ده ته رجوع كول.(1)
په هر صورت داصحابانو ﷺ په اړه ،چي دتقليد كولو كوم مثالونه مخكي تېر سول هغه له دې امله نه منل ،چي كه يې ورته ثابت كړو نو دا به معاذ الله پر اصحابانو ﷺ باندي عيب سي داسي فكر غوره او صحيح كار نه دئ.(2)

---

1: تذكرة الحفاظ للذهبي رحمة الله عليه وحلية الاولياء لابي نعيم رحمة الله عليه.
2: يادونه : داصحابانو ﷺ په اړه ،چي دفقه ا و غير فقه كوم توپير وسو هغه يوازي ددې لپاره وسو ،چي دغير مقلدينو ځانګړی اعتراض په دفع سو ،چي نه [illegible] رحمة الله عليه [illegible]
زياتو محقيقينو علماؤ رد كړې ده.

# شخصي تقليد او خواهش پرستي

۸: مخکي موږ وويل ،چي په حقيقت کي شخصي او مطلق تقليد دواړه جايز دي او دواړه داصحابانو رضي الله عنهم څخه ثابت دي يعني داچي يو څوک کولای سي ،چي مطلق تقليد وکړي او که شخصي تقليد کول غواړي هم يې کولای سي پردې خبره باندي ځينو خلکو داسي عجيب او غريب اعتراض کړی دئ ،چي په ټول پاکستان ،چي زيات خلک حنفيان دي يعني دحنفي مذهب پيروان دي ، په پاکستان کي ،چي کوم دموسيقۍ او نڅا کړني ترسره کېږي ددې ټولو مشري دحنفيانو په لاس کي ده يعني داچي کومي ناروا کړني په پاکستان کي ترسره کېږي کنترول او ضبط يې زيات ځايونه دحنفيانو په لاس کي دئ ، که شخصي تقليد په رښتيني ډول دخواهشت پرستۍ علاج وي نو بيا به ولي دغسي ناروا کړني ځای پرځای کېدلای؟()

دپورتنۍ نيوکي اړونده په پوره ادب سره عرض کوو ،چي کوم کس ،چي دالله جل جلاله او رسول صلی الله علیه وسلم داحکامو په خلاف ګناه کولو او ناروا کړنو ترسره کولو ته ملا تړلې وي ، په دې باور وي ،چي زما کړني ګناوي دي خو زه يې کوم ، دداسي خواهش پرستۍ علاج نه په تقليد سره کېږي او نه بېله تقليده کېږي اوس لويه بدبختي داده ،چي خلکو تردې لوړو خواهش پرستيو ته ملا تړلې ده هغه داچي ډېر خلک په دې هڅه کي دي ،چي سود ، قمار ، بې حجابۍ شراب او داسي نورو حرامو

ددې لپاره زيار باسي ،چي موسيقۍ ، نڅا ، شرابو او بې حجابۍ لپاره په خپل نظر سره کوم شرعي دليل پيدا کړي ، په ټوله اسلامي نړۍ کي ددې کړنو لپاره زيارونه ايستل کېږي آن تردې ،چي په زياتو ځايونو کي لوی ، لوی ادارې ددې لپاره خلاصي سوي دي ،چي دڅېړني په پايله کي دپورته ناروا کړنو لپاره کومه شرعي لاره پيدا کړي او دغه هڅي هغه وخت راپيل سوې ،چي لومړی يې تقليد ته شا کړه يعني داچي لومړی يې تقليد منعه وباله او بيا يې هڅه وکړه ،چي دتقليد ددېوال تر نړېدو وروسته په خپل فکر څه داسي دلايل پيدا کړي ،چي دهغه په مټ دناروا کړنو لپاره کومه کمزورې لاره پيدا کړي دا هر څه هغه وسوه ،چي خلکو تقليد منعه وباله ، دپخوانيو علماوو تقليد ته يې شرک او کفر ووايه او خلکوته يې دا په نظر کي ورکړل ،چي اسلام دتقليد پرځای خلکو ته دنظر ازادي ښيي.

حقيقت دادئ ،چي تر کومه پوري په اسلامي نړۍ کي شخصي تقليد رواج و، خلکو يوازي دشخصي تقليد لاره نيولې وه تر هغه مهاله پوري هيچا دپورتنيو ناروا کړنو دحلالوالي لپاره دلاوري نه سوای کولای بلکي دغه ناروا لاره ددوی پر وړاندي په ټپه ترلې وه ، کله ،چي په اسلامي نړۍ کي دتقليد دحرمت پروپاګند پيل سو ، تقليد ته حرام او شرک وويل سوه نو ټولو ملحدينو ته دتحريف لاره خلاصه سوه، زيات شمېر اسلامي شعائر دملحدينو ښکار وګرځېدل.

# تقليد او نوي پيدا سوي مسئلې

۹: پر شخصي تقليد باندي يوه نيوكه او اعتراض دا كېږي ،چي كه څوک شخصي تقليد كوي نو په شخصي تقليد سره پر انسانانو باندي كړی راتنګيږي هغه په دې ډول ،چي كومي نوي مسائلي منځته راځي دهغو حل نه كيږي؟

دپورته اعتراض په جواب كي بايد ووايو ،چي مخكي موږ دتبحر في المذهب په موضوع كي داخبره څرګنده كړې وه ،چي دعام سړي او دمتبحر في المذهب دتقليد تر منځ توپير سته لكه ،چي دشخصي تقليد تر عنوان لاندي يوه څانګه (داجتهاد في المسائل) هم ده يعني داچي كومي مسئلې ،چي نوي پيدا كېږي ددغو مسئلو حل دمجتهدينوعلماوو داصولو په رڼا كي دقرآن او حديث څخه استنباطيږي او داجتهاد دغه لړی ،چي دنوو مسئلو اړونده ده په اوس زمانه كي هم جاري ده ، حاصل داچي دنوو مسئلو دحل لپاره هيڅكله كوم خنډ نه دئ واقع سوی او نه به په راتلونكي كي واقع كيږي.

همدا ډول دزمانې او عرف دبدلېدو په صورت كېداى سي ،چي ديوه

كومه مسئله دمسلمانانو دشرعي اړتيا له امله ددې متقاضي وي ،چي په مسئله كي بدلون راسي نوديوه مجتهد له خوا ،چي داجتهاد اصول او ځانګړتياوي پكښي موجودي وي كولاى سي ،چي ياد

کتابونوکي ذکر سوي دي لکه ،چي په زياتوځايونوکي حنفي علماوو دامام ابوحنيفةرحمة الله عليه دقول په خلاف فتوا ورکړې ده دمثال په ډول دامام ابوحنيفةرحمة الله عليه پر مذهب باندي دقرآنکريم پر ورزده کړه باندي اجرت اخستل حرام دي خو متاخرينو علماوو دزمانې دتغير بدلون او شرعي اړتيا له امله خپل مذهب پرېښودئ دقرآنکريم دورزده کړي لپاره يې مزدوري جايزه وبلل همدا ډول دامام ابوحنيفةرحمة الله عليه له آنده مفقود الخبر ، عنين او متعنت نه سي کولای ،چي مېرمن ځان ځني خلاص کړي خو متاخرينو علماوو په دې ټولو مسئلو کي دامام مالکرحمة الله عليه پر مذهب باندي فتوا ورکړې ده ،چي تفصيل يې مولانا اشرف علي تهانويرحمة الله عليه په کتاب (الحلية الناجزة للحلية العاجزة) کي موجود دئ.

په معاصر وخت کي هم که په کومو مسئلوکي دا خبره محسوسه سي ،چي کومه ربنتيني خبره ددې تقاضا کوي ،چي تغير دي پکښي راسي نو متبحر علماء کولای سي ،چي دڅلور مذهبونو څخه ديوه مذهب په رڼا کي فتوا ورکړي خو داخبره اړينه ده ،چي تلفيق رانسي يعني داچي دکوم امام مسلک نيم ګړی وا نه خستل سي بلکي دهغه مذهب ټول شرايط په نظر کي ونيول سي ، هر اړخيزه معلومات دي يې راغونډ کړل

مسلمانان په غور ، دقت او پوره احتياط سره دعلماوو په مشورو سره خپلي مسائلي حل کړي.[1]

## حنفي مذهب او په حديث باندي عمل

۱۰: پر حنفي مذهب باندي يو اعتراض او نيوکه دا هم کيږي ،چي دحنفي مذهب حديث يعني هغه حديث ،چي حنفي مذهب تمسک او استدلال په کوي هغه زياته برخه ضعيف وي؟

ددغه نيوکي په جواب کي بايد ووايو ،چي ددغه نيوکي بنسټ پر تعصب باندي ولاړ دئ ځکه که پر حقيقت باندي سترګي پټي نه سي او په رښتيني ډول باندي داحنافو علماوو کتابونه وکتل سي نو دغه اعتراض به بيخي پر حنفي مذهب باندي وارد نه سي په ځانګړي ډول که لاندي کتابونه وکتل سي:

1. شرح معاني الاثار للطحاوي رحمة الله عليه
2. فتح القدير لابن الهمام رحمة الله عليه
3. نصب الراية للزيلعي رحمة الله عليه
4. الجوهر النقي للمارديني رحمة الله عليه
5. عمدة القاري للعيني رحمة الله عليه

---

[1]: دمسلمانانو دربنتيني اړتيا په صورت کي دنورو مجتهد ... ٢، ص ... ع ... ص : ٢١٨، فتاوى عالمكيرية ، باب ثامن ، ج ... ، ص : ٢٧٥ ... رحمة الله عليه ...
الجامع الصغير ، للمناوي رحمة الله عليه ج : ١ ، ص : ٢١٠ حديث اختلاف امتي رحمة.

6. فتح الملهم لمولانا العثماني رحمة الله عليه
7. بذل المجهود لمولانا السهارنپوري رحمة الله عليه
8. اعلاء السنن لمولانا ظفر احمد العثماني رحمة الله عليه
9. معارف السنن لمولانا البنوري رحمة الله عليه
10. فيض الباري شرح البخاري

په پورتنيو کتابونو کي حنفي مذهب دقرآن او حديث پر بنسټ پوره دلايل په اصولي او تشريحي ډول سره بيان سوي دي.

پاته دي نه وي، چي څو خبرو يادولو اړين دي، چي دلاندنيو خبرو څخه عبارت دي:

۱: داخبره لازمي ده، چي دحديث صحت او نه صحت يوازي په بخاري او مسلم پوري معلق نه دئ يعني داچي په صحيحينو کي کوم حديث نه وهغه نو ضعيف دئ بلکي دحديث دقوت او ضعف دار مدار پردې باندي دئ، چي ددغه حديث سند داصول حديث دشرايطو سره برابر دئ که يا؟

دبخاري رحمة الله عليه او مسلم رحمة الله عليه څخه ماسوا نورو هم په سلګونو محدثينو احاديث رانقل کړي دي دهغو څخه، چي هر يو داصول حديث دشرايطو سره برابر سو هم هغه حديث صحيح دئ داخبره هم ديادولو وړه ده، چي کوم حديث، چي دصحيحينو څخه ماسوا بل کتاب راوړی وي هغه دي مرجوح وبلل سي داخبره بېخي صحيح نه ده ځکه کله داسي وي، چي يو حديث دصحيحينو څخه پرته بل کتاب راوړی وي مګر

همدا لامل دئ کوم حدیث ،چي په صحیحینو کي نه وي یا په شپږګونو صحیحو کتابونو کي داحادیثو نه وي هغه دي ضعیف وبلل سي، داسي نه ده بلکي که کوم حدیث دصحیح سند له اړخه پیاوړی و همغه حدیث صحیح دئ او کوم حدیث ،چي پیاوړی نه وي همغه حدیث ضعیف دئ ،که ،چیري دغه معیار په نظر کي ونیول سي نو ډېر هغه اعتراضات ،چي ظاهربینه خلکو پر حنفي مذهب باندي کړي دي هغه به له منځه ولاړ سي.

۲ : دوهمه خبره داده ،چي دمجتهدینو علماوو ترمنځ ،چي په مسائلو کي کوم اختلافات سته دهغو بنسټیز سبب دادئ ،چي ددوی داستدلال طرز اوداستنباط طریقه بېله ، بېله ده دمثال په ډول دځینو مجتهدینو طرز استدلال داسي دئ ،چي که په یوه مسئله کي احادیث متعارض سي نو په هغه حدیث دي عمل وسي ،چي سند یې ډېر قوي وي که څه هم نور احادیث سندا قوي موجود وي ، ځیني علمآء بیا ددغو متعارضو احادیثو تشریح داسي کوي ،چي دغه متعارض احادیث بیا سره هم آهنګ سي که څه هم دکمي درجې صحیح یا حسن حدیث اصلي وګنل سي او دصحیح حدیث معنا خلاف الظاهر سي ، دځینو مجتهدینو

هیچا باندي ددې تور نه سي لګېدای ،چي ده نو قوي حدیث پرې ایښی دئ او په ضعیف حدیث یې عمل کړی دئ.

امام ابو حنیفة رحمة الله علیه

څخه مخالف و لکه ده مبارک ،چي په لمانځه کي د قهقهې خندا په کولو داودس دماتېدو پرېکړه کړې ده ، په عسلو کي يې دزکاة دواجبېدو پرېکړه کړې ده او داسي نوري مسئلې هم سته ،چي ده مبارک په ضعيفو حديثونو باندي عمل کړی دئ او قياس يې پرې ايښی دئ.

۳: دريمه خبره داده ،چي دحديثو قوت او ضعف ټاکل دا هم يوه اجتهادي معامله ده همدا لامل دئ ،چي دجرح او تعديل دعلماوو ترمنځ اختلاف سته دمثال په ډول يو حديث ديوه امام له آنده صحيح وي خو دبل امام له آنده بيا ضعيف وي دغه معلومات هغه وخت کېدای سي ،چي څوک داحاديثو کتابونه مطالعه کړي . ډېر وخت داسي وي ،چي يو حديث امام ابو حنيفة رحمة الله عليه صحيح بولي ، داعتماد وړ يې بولي او عمل باندي کوي مګر بل امام بيا هغه حديث ضعيف بللی وي او عمل نه باندي کوي، داچي امام ابو حنيفة رحمة الله عليه خپل مجتهد دئ نو دنورو مجتهدينو ويناوي پرده باندي حجت نه سي کېدای.

۴: ډېر وخت داسي وي ،چي امام ابو حنيفة رحمة الله عليه ته کوم حديث په صحيح سند رسېدلی وي مګر تر ده وروسته بيا کوم ضعيف راوي هغه حديث رانقل کړی وي نو ځکه دوروسته امامانو لخوا دغه حديث ته ضعيف ويل سوي وي په داسي کړنه سره پر امام ابو حنيفة رحمة الله عليه باندي

رحمة الله عليه کي په صحيح سند سره رانقل سوی دئ.

٦: كله داسي وي ،چي يو حديث ضعيف وي مګر دېلابېلو طريقو او اسانيدو له لاري روايت سوی وي، دېلابېلو اطرافو او اړخونو له خوا راويانو روايت كړی وي دغه حديث ته محدثين حسن لغيره وايي، كه څوک په دغه حديث باندي عمل وكړي نو دا الزام باندي لګېدای نه سي ،چي ګويا ده په ضعيف حديث باندي عمل وكړ.

٧: كله داسي وي ،چي يو حديث ضعيف راوي رانقل كړی وي مګر داخبره اړينه ده بايد وويل سي ،چي هر ضعيف راوي خامخا ضعيف حديث نه رانقلوي كله داسي وي ،چي كوم ضعيف راوي قوي حديث رانقل كړی وي هغه په دې ډول ،چي پر قوت باندي يې قوي قرينه موجوده وي ددغه قوي قرينې په وجه دغه حديث منل كېږي دمثال په ډول يو حديث ضعيف وي مګر ټولو اصحابانو او تابعينو لكه حديث ،چي امر كوي همغسي عمل يې كړی وي لكه د (لاوصية لوارث) حديث ،چي ضعيف راوي رانقل كړی دئ مګر داچي ټولو اصحابانو او تابعينو عمل په كړی دئ نو ځكه امامانو او مجتهدينو منلی دئ او دعمل كولو جوګه يې بللی دئ.

كله خو لاداسي هم وي ،چي ځيني محدثين ضعيف حديث ته پر صحيح



له مخي ،چي رسول الله ﷺ خپله لور ابو العاص ته وركړه نوې نكاح يې ور تړل او نوی مهر يې هم ورته وټاكی ، دعبدالله



پرېښودل يعني داچي بي بي زينب رضي الله عنها دابو العاص رضي الله عنه سره په هغه زړه

نکاح کي پاته سوه، اوس نو که پورتنیو دوو حدیثونو ته وګورو لومړی حديث ضعيف دئ او دوهم حديث صحيح دئ ددغه دوو حدیثونو په اړه دامام ترمذي رحمه الله غوندي لوړ محدث داسي پریکړه کړې ده ،چي دوهم حديث ،چي ضعيف دئ دې ته يې پر لومړی حديث ،چي قوي دئ ترجيح ورکړی ده لامل يې دادئ ،چي په دوهم حديث باندي دټولو اصحابانو او تابعینو عمل و.(¹)

امام ابوحنيفة رحمه الله هم کله ددغسي قوي قرائنو په وجه په ضعيف حديث عمل کړی وي نو پر ده باندي دا الزام نه سي لګېدای ،چي ګواکي ده نو په ضعيف حديث باندي عمل کړی دئ.

۸: کله داسي وي ،چي دامام ابوحنيفة رحمه الله په مذهب باندي پوره پوهاوی نه وي راغلی نو ځکه دستي پریکړه وکړي ،چي دامام ابوحنيفة رحمه الله مذهب دحديث څخه مخالف دئ حال داچي دده مبارک مذهب دحديث سره عين مطابق وي ، داسي غلطي ويناوي دځينو اهل علمو څخه سوي دي لکه مشهور سلفي عالم مولانا اسماعيل سلفي رحمه الله ،چي دحنفيانو په مذهب کي يې دتعديل الارکان پر حکم باندي اعتراض کړی دئ اعتراض يې په لاندي ډول دئ:

یو سړي درسول الله ﷺ په حضور کي لمونځ ادا کړ، نوموړي کس په رکوع او سجده کي تعديل او ارام ونه کړ، رسول الله ﷺ درې ځلي

ژباړه : لمونځ وکړه تا لمونځ نه دئ کړی.

یعني داچي ستا لمونځ دصحت له پلوه لمونځ نه دئ درسول الله ﷺ دپورتنۍ لارښووني پر بنسټ شوافع ،اهل حدیث او ځیني نور علماء دافکر کوي ،چي که په رکوع او سجده کي اطمنان رانسي هغه لمونځ صحیح نه دئ او دامام ابوحنیفة رحمة الله علیه پر مذهب که درکوع اوسجدې توپیر وسي نو لمونځ یې صحیح دئ دامام ابوحنیفة رحمة الله علیه پر دغه وینا باندي دوی داسي اعتراض کوي ،چي دده مبارک دغه وینا دحدیث مخالفه ده ځکه په حدیث کي په ځرګند ډول وهغه لمانځه ته لمونځ نه وویل سوه ،چي په رکوع او سجده کي یې اطمنان نه و.(1)

پورته اعتراض ،چي ځوک کوي په حقیقت کي دغه کس دحنفي مذهب صحیح ترجماني نه کوي ځکه حنفي مذهب هم دا وایي ،چي که چا په رکوع او سجده کي اطمنان ونه کړ، دهغه کس لمونځ بېرته راګرځول لازمي دئ ، اعتراض کونکي هم دا وایي ،چي که چا په رکوع اوسجده کي اطمنان ونه کړ، لمونځ یې بېرته ر اګرځول لازمي دئ که دامام ابوحنیفة رحمة الله علیه قول هم داسي سي لکه دوی ،چي وایي نو بیا دوی ولي اعتراض کوي؟ خو یوه خبره دیادولو وړ ده هغه داچي امام ابوحنیفة رحمة الله علیه





داچي که فرض پاته سي نو لمونځ کونکی به لمونځ بېرته راګرځوي او که واجب پاته سي نو هم به لمونځ کونکی بېرته لمونځ راګرځوي يوازي فرق يې دومره دئ ،چي که چا فرض په لمانځه کي پرېښودئ دغه کس ته تارک الصلوة يعني دلمانځ پرېښودونکی ويل کېږي، ټول لمونځ يې ولاړی بېرته به يې راګرځوي او که چا واجب پرېښودئ تارک الواجب يعني دواجب پرېښودونکی ورته ويل کېږي يعني داچي پرده باندي واجب ده ،چي ديوه واجب دپرېښودو له امله به لمونځ بېرته راوګرځوي ، داخبره دحديث څخه خلاف هم نه ده ځکه دحديث په وروسته برخه کي خپله ددغه خبري څرګندونه سوې ده ځکه په جامع ترمذي کي راغلي دي ،چي کله رسول اللهﷺ وهغه کس ته وفرمايل:

صل فانک لم تصل .

ژباړه : لمونځ وکړه تا لمونځ نه دئ کړی.

اصحابانو ﷺ ،چي داخبره واورېدل نو ډېره ګرانه ورته معلومه سوه،چي څوک دلمانځه تخفيف کوي هغه ته دي تارک الصلوة وويل سي ، دلږ وخت وروسته رسول اللهﷺ وهغه کس ته دلمانځه صحيح طريقه وروښوول او دارکانو پر تعديل باندي يې ورته ټينګار وکړ او بيا يې ورته و فرمايل:

فاذا فعلت ذالک فقد تمت صلوتک وان انتقصت منه شيئا انتقصت من صلوتک.

ژباړه : کله ،چي دي دغسي وکړل نو لمونځ دي پوره سو او که دي کوم شی ځني کم کړ نو ستا په لمانځه کي هم کموالی رامنځته کېږي.

حضرت رفاعةﷺ ،چي دپورتني حديث راوي دئ فرمايي:

وكان اهون عليهم من الاولي انه من انتقض من الاولي انه من انتقص من ذالک شيئا انتقص من صلاته ولم تذهب کلها.(1)

ژباړه : رسول اللهﷺ ،چي وروستۍ خبره وکړه اصحابانو رضي الله عنهم ته تر لومړۍ خبري اسانه معلومه سوه يعني داچي که چا کمی وکړ نو په لمانځه کي يې کمی پيدا کېږي او ټوله لمونځ يې نه ځي.

که دپورتني حديث وروستۍ برخي ته وکتل سي نو په څرګند ډول باندي دحنفيانو دعمل څرګنوالی او تائيد کوي.

دلاسپيناوي په موخه بايد ووايو ،چي حنفيان خو په پورتني حديث باندي بېخي عمل کوي بلکي تر نورو لا ښه په دې حديث عمل کوي هغه خبره بېخي غلطه ده ،چي وايي حنفيان دپورتني حديث څخه په څرګند ډول مخالفت کوي داچي حنفيان په پورتني حديث عمل کوي مخالفت نه ځني کوي پورته واضح سوه او داچي تر نورو يې ښه کوي هغه په دې ډول ،چي حنفيان دحديث په لومړۍ برخه هم عمل کوي او دپای په برخه يې هم عمل کوي ځکه دحديث په لومړۍ برخه کي راځي ،چي که چا په لمانځه کي تعديل ونه کړ، لمونځ به بېرته راګرځوي حنفيان هم دغسي عمل کوي او وايي ،چي څوک په لمانځه

---

[1]: جامع الترمذي باب ماجاء في وصف الصلوة

باندي ددغه لمانځه ببرته راګرځول دواجب دپرېښودو له امله واجب دي.

که پورتنۍ پوره تشريح څوک په نظر کي ونيسي نو دا به ورته معلومه سي ،چي که څوک پر حنفي مذهب باندي دا الزام لګوي ،چي هغوی دحديث څخه مخالفت کوي نو دا الزام به په ښکاره پر حنفي مذهب باندي زياتی وي.

په هر صورت ډېر وخت داسي وي ،چي په حنفي مذهب باندي څوک پوه سوی نه وي او پوره څېړنه يې نه وي کړې نو ځکه اعتراض ورته پيدا سي يعني داچي زيات وخت داعتراض منشاء نه تحقيق له امله وي.

که پورته څو اصول په نظر کي ونيول سي، دحنفيانو دمذهب پوره تحقيق به وسي ، دلايل يې وڅېړل سي نو ټولي غلط فهمياني به لمنځه ولاړې سي ،چي وايي ،چي دحنفي مذهب دلايل ضعيف دي ، يا داچي احناف پر احاديثو باندي قياس مخکي کوي.

حقيقت دادئ ،چي يو مجتهد ددې حق لري ،چي دامام ابو حنيفة رحمة الله عليه سره په يوه مسئله کي اختلاف وکړي او يا دي دده يو دليل ونه مني مګر که څوک دامام ابوحنيفة رحمة الله عليه پر مذهب باندي علي الاطلاق دضعف

قياس ته تر حديث ترجيح ورکول کېږي داسي کړنه تر لوی ظلم کمه نه ده.

داخبره ثابته ده ،چي ډېرو وتلو مجتهدينو دامام ابوحنيفة رحمة الله عليه ستاينه کړې ده خو دلته يوازي ديوه داسي عالم وينا رانقلوو ،چي په قرآن ، حديث او تصوف کي منل سوی کس دئ ، حنفي هم نه دئ بلکي شافعي عالم دئ نوموړی عالم علامه عبدالوهاب شعراني رحمة الله عليه دئ ، دی

كسانو يې سخته غندنه كړې ده ،چې پر امام ابو حنيفة رحمة الله عليه او يا دده پر فقهي مذهب باندې نيوكې او اعتراضونه كوي.
علامه عبدالوهاب شعراني رحمة الله عليه په خپل كتاب الميزان الكبري كې ثو فصلونه دامام ابو حنيفة رحمة الله عليه ددفاع لپاره وضع كړي دي، نوموړى عالم فرمايي:

اعلم يا اخي اني لم اجب عن الامام في هذه الفصول بالصدور احسان الظن فقط ، كما يفعل بعضهم وانما اجبت عنه بعد التتبع والفحص في كتب الادلة ... ومذهبه اول المذاهب تدوينا وآخرها انقراضا كما قاله بعض اهل الكشف ... وقد تتبعت اقواله واقوال اصحابه لما الفت كتاب الادلة المذاهب فلم اجد قولا من اقواله واو اقوال اتباعه الا وهو مستند الي آية او حديث او اثر او الي مفهوم ذالک او حديث ضعيف كثرت طرقه او الي قياس صحيح علي اصل صحيح، فمن اراد الوقوف فليطالع كتابي المذكور.([1])

ژباړه : اې وروره! پوه سه ما،چې په دغه فصلونو كې دامام ابو حنيفة رحمة الله عليه له لوري ځخه كوم جوابونه وركړي دي له دې امله نه دي ،چې زما باندې حسن ظن او يا حسن عقيدت دئ لكه ،چې دځينو خلكو هم دغسې عادت وي بلكې ما ،چې كوم څه ويلي دي هغه مې د كتابونو او دلايلو دپوره لټون وروسته ويلي دي ... ځرګنده خبره ده ،چې دامام ابو حنيفة رحمة الله عليه مذهب تر ټولو مخكنى مدون سوى مذهب دئ او ځيني دكشف ښتنان په دې باور دي ،چې تر ټولو وروسته به له منځه ځي... ما،چې كله دفقهي مذاهبو پر اقوالو باندې كتاب وليكئ نو دامام ابو حنيفة رحمة الله عليه [redacted]

---

[redacted] رحمة الله عليه [redacted] ٦٣ ، ٦٤، ط : مصطفي الباني

دده دپیروانو په ویناوو کي داسي خبره پیدا نه کړه ،چي دلاندي شرعي حجتونو څخه دي مخالف وي:

یاداچي دغه خبره به دقرآن سره موافقه وه ، یاد ا ،چي دحدیث سره به موافقه وه ، یا داچي دکوم اثر سره به موافقه وه، یاداچي دقرآن ، حدیث او اثر دمفهوم سره به موافقه وه ، یاداچي دکوم داسي ضعیف حدیث سره به موافقه وه ،چي په ډېرو طریقو سره به روایت سوی و ، یاداچي دصحیح قیاس سره به موافقه وه ،چي د صحیح اصل څخه به متفرع و ، که څوک غواړي پوره معلومات لاسته راوړي نو په دې اړه دي زما مذکور کتاب مطالعه کړي.

تر پورتني عبارت وروسته علامه عبدالوهاب شعراني رحمة الله عليه دهغه کسانو په اړه مستقل فصل ایښی دئ ،چي پر امام ابوحنیفة رحمة الله عليه باندي الزام لګوي ،چي دی تر حدیث قیاس ته حق اولیت ورکوي، ددغه موضوع په اړه علامه عبدالوهاب شعراني رحمة الله عليه لیکي:

اعلم ان هذا الکلام صدر من متعصب علي الامام متهور في دینه غیر متورع في مقاله غافلا عن قوله تعالي : ان السمع والبصر والفواد کل اولئک کان عنه مسؤلا...الخ.

ژباړه : پوه سئ! داخبري هغه څوک کوي ،چي دامام ابوحنیفة رحمة الله عليه سره تعصب لري ، په خپل دین کي دلاوره وي ، په خبره کي احتیاط نه

جل جلاله

رحمة الله عليه وروسته دا قصه هم لیکلي ده ،چي

یوه ورځ حضرت سفیان ثوري رحمة الله عليه ، مقاتل بن حیان رحمة الله عليه

رحمة الله عليه رحمة الله عليه رحمة الله عليه ته

رحمة الله عليه

امام ابو حنيفة رحمة الله عليه ته راغلل نو پوښتنه يې ځني وکړل ،چي ستا په اړه ځيني خلک داسي وايي ،چي ته قياس تر احاديثو مخکي کوې؟ ده مبارک په جواب کي ورته وفرمايل: قياس خو زه تر قرآن او حديث نه مخکي کوم بلکي تر اثر يې لا هم وروسته کوم ، بيا امام ابو حنيفة رحمة الله عليه ودغو مبارکانو تر غرمې پوري دخپلي تګ لاري اړونده معلومات ورکړل، وروسته دغه مبارکان ولاړ رسول او وې فرمايل:

انت سيد العلماء فاعف عنا فيما مضي منا من قيعتنا فيک بغير علم.

ژباړه : ته دعلماوو سردار يې موږ ته دهغه بدګمانۍ په اړه عفوه وکړه کومه ،چي موږ مخکي دنه پوهاوي له امله درلوده.

علامه عبدالوهاب شعراني رحمة الله عليه بيا يو فصل ايښي دئ ددې لپاره ،چي دهغه خلکو خبري رد کړي ،چي هغوی دامام ابو حنيفة رحمة الله عليه پر مذهب باندي ددلايلو دضعف الزام لګوي ، دغه ترديد يې په مفصل او واضح ډول کړی دئ وروسته يې بيا يو فصل ايښي دئ په دې فصل کي يې ليکلي دي ،چي دامام ابو حنيفة رحمة الله عليه مذهب په ديني لحاظ محتاط ترين مذهب دئ، علامه عبدالوهاب شعراني رحمة الله عليه په دې اړه ليکلي دي:

فاني بحمد لله تتبعت مذهبه فوجدته في غاية الاحتياط والورع.

ژباړه : الله جل جلاله لره دي حمد وي ما دامام ابو حنيفة رحمة الله عليه دمذهب دمسائلو تتع وکړه ما ته دا خبره ثابته سوه ،چي دده مذهب محتاط ترين

دعلامه عبدالوهاب شعراني رحمة الله عليه دغه څو ويناوي مو دنمونې په ډول رانقل کړې دپوره تفصيل لپاره د علامه عبدالوهاب شعراني رحمة الله عليه کتاب ميزان الکبري په دغه موضوع کي مطالعه کړئ(1)

## امام ابوحنيفة رحمة الله عليه او علم حديث

۱۱: پر امام ابوحنيفة رحمة الله عليه باندي ځيني خلک دا سطحي نيوکه هم کوي ،چي دامام ابوحنيفة رحمة الله عليه داحاديثو ذخيره نه وه يعني داچي ده مبارک په حديثونو کي ډېر معلومات نه درلودئ بلکي په احاديثو کي کمزوری و.
حقيقت دادئ ،چي دپورتنی اعتراض بنسټ هم پر تعصب او کم علمی باندي ولاړ دئ ځکه ډېر علماء کرام د امام ابوحنيفة رحمة الله عليه نه يوازي په فقه کي دده په جلاليت باندي قايل دي بلکي ده ته په حديثونو کي هم په علمي جلاليت باندي قايل دي ، نه يوازي ،چي حنفي علماء دا وايي بلکي دنورو مذهبونو علماء هم د امام ابوحنيفة رحمة الله عليه په علمي لوړوالي باندي اعتراف کوي ، دهغو ټولو علماوو ويناوي دلته رانقول ګران کار دئ يوازي دنمونې لپاره دلته دڅو محدثينو ويناوي رانقلوو:
۱ : حضرت ابن جريح رحمة الله عليه دفقه او حديث مشهور امام دئ او دامام شافعي رحمة الله عليه

رحمة الله عليه رحمة الله عليه

ورورسېدئ نو ده دډېر خفګان څخه يې وويل:
اي علم ذهب.(1)

1: الميزان الکبری ، ج : ۱ ، ص : ٦٣ ت

ژباړه : څنگه علم ولاړئ.

۲ : مكي بن ابراهيم رحمة الله عليه دامام بخاري رحمة الله عليه استاذ دئ دامام بخاري رحمة الله عليه زياته برخه ثلاثيات هم دده څخه روايت كړل سوي دي ، دی د امام ابوحنيفة رحمة الله عليه شاگرد و، امام مزني رحمة الله عليه د امام ابوحنيفة رحمة الله عليه په اړه تهذيب الكمال كي وايي:

كان اعلم اهل زمانه(2)

ژباړه : امام ابوحنيفة رحمة الله عليه دخپلي زمانې تر ټولو ښه عالم و.

پاته دي نه وي ،چي دمتقدمينو علماوو له آنده دعلم لفظ دحديث علم ته استعماليږي نو ځكه كوم شهادتونه ،چي د امام ابوحنيفة رحمة الله عليه دعلم لپاره سوي دي هغه دعلم حديث لپاره دي.

۳: حضرت شعبة بن الحجاج رحمة الله عليه په حديثوكي دامير المؤمنين لقب لري ، په جرح او تعديل كي ترټولو مخكي امام بلل كيږي هغه د امام ابوحنيفة رحمة الله عليه په اړه وايي:

كان والله حسن الفهم جيد الحفظ.

ژباړه : په الله جل جلاله قسم كوم ،چي امام ابوحنيفة رحمة الله عليه ښه فهم او ښې حافظې والا و.

رحمة الله عليه رحمة الله عليه

(3

---

.۴۵۰

2: تهذيب التهذيب ، ج : ۱۰ ۴۵۱

۸ او ۱۷

صفحې څخه اخستل سوی دئ.

ژباړه : دکوفې څخه دعلم څراغ مړ سو اودکوفې خلک به بیا د امام ابوحنیفة رحمة الله علیه په څېر بنه عالم دتل لپاره نه ویني.

۴: امام ابوداود رحمة الله علیه د امام ابوحنیفة رحمة الله علیه په اړه وايي:

كان ابا حنيفة رحمة الله علیه اماما.(1)

ژباړه : امام ابوحنیفة رحمة الله علیه امام و.

۵: یحیی بن معین رحمة الله علیه دجرح او تعدیل امام دئ د امام ابوحنیفة رحمة الله علیه په اړه وايي:

كان ابوحنيفة رحمة الله علیه ثقة لايحدث بالحديث الا بما يحفظه.

بل ځای فرمايي:

كان ابوحنيفة رحمة الله علیه ثقة في الحديث.

همدا ډول یحیی بن معین رحمة الله علیه دیحیی بن سعید القطان رحمة الله علیه دا اعتراف رانقل کړی دئ:

قد اخذنا باكثر اقواله.(2)

ژباړه : موږ په ډېرو ځایونو کي د امام ابوحنیفة رحمة الله علیه په اقوالو عمل کوو.

په یو بل ځای کي راځي چي دیحیی بن معین رحمة الله علیه څخه پوښتنه وسول ،چي ایا دامام ابوحنیفة رحمة الله علیه احادیث سته؟ ده په جواب کي ورته

(3)

ژباړه : امام ابوحنیفة رحمة الله علیه

1: تذكرة الحفاظ للذهبي رحمة الله علیه ۱ ، ص .

2: تهذيب التهذيب ، ج : ۱۰ ۴۵۱.

3: مناقب الامام الاعظم للموفق، ج : ۱ ، ص : ۱۹۲

پورته ويناوي يوازي دنمونې په توګه راوړل سوې که نه نو داسي ويناوي بېخي زياتي دي ،چي د امام ابوحنيفة رحمة الله عليه په اړه ويل سوي دي.

امام ابوحنيفة رحمة الله عليه خپله داحاديثو يوکتاب د (کتاب الاثار) په نوم تاليف کړ دئ،چي هغه مخکني داحاديثو کتابونه لکه موطا امام مالک ، مصنف عبدالرزاق ، منصنف ابن ابي شيبة او داسي نور کتابونه لا هم نه وه تاليف سوي.

امام زرنجي رحمة الله عليه فرمايي: امام ابوحنيفة رحمة الله عليه په کتاب الاثار کي تر څلوېښت زرو زيات منتخب احاديث رانقل کړي دي.[1]

د امام ابوحنيفة رحمة الله عليه دپورتني کتاب ترڅنګ نورو جليل القدر محديثينو د امام ابوحنيفة رحمة الله عليه اولس مسانيد هم راجمع کړي دي ،چي هر يو يې تر مسند امام شافعي کم نه دئ، په دغه محديثينو کي يو حافظ ابن عدي رحمة الله عليه دئ ، دی په احاديثو کي تکړه نقاد دئ ، دده په لومړيو کي پر امام ابوحنيفة رحمة الله عليه باندي بدګومان و، وروسته ،چي حقيقت ورته معلوم سو نو دمخکنيو بدګومانيو دکفارې لپاره د امام ابوحنيفة رحمة الله عليه مسند مرتب کړ.

په هر صورت په احاديثو کي د امام ابوحنيفة رحمة الله عليه مقام ډېر لوړ دئ دومره تفصيل پکښي سته ،چي ټول دلته ليکل ناشوني دي[2]

---

٦ ، ... ١٣٢١هـ

[2]: په دې موضوع کي دي دتفصيل لپاره په اردو ژبه کي دمولانا احمد کاندهلوي رحمة الله عليه کتاب امام اعظم اور علم حديث وکتل سي ، او په عربي ژبه کي دي مولانا ظفر احمد عثماني کتاب اتجاء الوطن وکتل سي.

په اخره کي موږ دمشهور اهل حديث عالم نواب صديق حسن خان رحمة الله عليه هغه شاهدي رانقلوو ،چي د امام ابوحنيفة رحمة الله عليه په اړه يې کړې ده ، ده د امام ابوحنيفة رحمة الله عليه په اړه ليکلي دي:

وکان عالما عاملا زاهدا عابدا ورعا تقيا کثير الخشوع دائم التضرع الي الله تعالي.

ژباړه : امام ابوحنيفة رحمة الله عليه باعمله عالم و ، زاهد او عبادت کونکی و ، پرهيزګاره ، زيات خشوع کونکی او تل الله جل جلاله ته عاجزي کونکی و.

د امام ابوحنيفة رحمة الله عليه تر ډېرو فضايلو او مناقبو ليکلو وروسته يې ليکلي دي:

ومناقبه وفضائله کثيرة ، وقد ذکر الخطيب البغدادي في تاريخه منها شيئا کثيرا، ثم اعقب ذالک بذکر ما کان الاليق ترکه والا ضراب عنه ، فمثل هذا الامام لايشک في دينه ولافي ورعه وتحفظه ، ولم يکن يعاب بشئ سوی قلة العربية.([1])

ژباړه: د امام ابوحنيفة رحمة الله عليه مناقب او فضايل ډېر دي ،چي خطيب بغدادي رحمة الله عليه په خپل تاريخ کي ډېر ليکلي دي ، وروسته يې ځيني داسي خبري ليکلي دي ،چي پرېښودل او اعراض ځني کول ښه دي ، د امام ابوحنيفة رحمة الله عليه په ديانت ، پرهيزګارۍ او تحفظ کي شک نسته او پرده باندي هيڅ عيب نه سي لګېدای پرته لدې ،چي په عربيت کي کمزوری و.

نواب حسن خان رحمة الله عليه پر امام ابوحنيفة رحمة الله عليه باندي دعربيت دکموالی نيوکه کړې ده پردې خبره به وروسته وږغېږو خو لومړی بايد دا ووايو ،چي پر امام ابوحنيفة رحمة الله عليه ،چي داحاديثو کوم اعتراض کېږي دهغو په اړه حسن خان رحمة الله عليه هيڅ يادونه نه ده کړې بلکي دده کتاب تاج

[1]: التاج المکمل ، مؤلفه نواب حسن صديق خان رحمة الله عليه ، ص: ١٣٦ تر ١٣٨ پوري، ترجمه :١١٩، ط : بمبي، سنه : ١٣٨۴هـ.

المکل ،چي داحاديثو دکتابونو په لړ کي دئ ده دخپل کتاب په پيل کي ويلي دي ،چي زه دمحدثينو حالات بيانوم او ده په دغه بيان کي امام ابو حنيفةرحمة الله عليه دمحدثينو په قطار کي راوړی دئ ، محدث يې ورته ويلی دئ او هيڅ نيوکه يې نه ده باندي کړې.

پاته سوه داخبره ،چي نواب صاحب پر امام ابو حنيفةرحمة الله عليه باندي دعربيت دکموالي نيوکه کړې ده ، نواب صاحب دغه اعتراض دقاضي ابن خلکان څخه رانقل کړې ده ځکه هغه هم په کتٔ متٔ ډول دغسي عبارت ليکلی دئ، مګر داسي معلوميږي ،چي نواب صاحب دابن خلکان وروستنی عبارت نه دئ رانقل کړی ،چي دااعتراض اصل حقيقت معلوم سوی وای، حقيقت داسي دئ ،چي ددې اعتراض اصل بنسټ يوه قصه ده ، قصه په دې ډول ده : مشهور نحوي ابو عمرو بن العلاءرحمة الله عليه د امام ابو حنيفةرحمة الله عليه څخه دقتل شبه عمد په اړه پوښتنه وکړه ،چي ايا په دې قتل سره قصاص لازميږي که يا؟ امام ابو حنيفةرحمة الله عليه دخپل مذهب مطابق جواب ورکړ، ،چي قصاص نه لازميږي، ابو عمروبن العلاءرحمة الله عليه ورته وويل : ولوقتله بالمنجنيق؟، امام ابو حنيفةرحمة الله عليه ورته وفرمايل: ولوضربه باباقبيس.

دامام ابو حنيفةرحمة الله عليه پر دغه جمله باندي دا اعتراض وسو ،چي ده داجمله بايد داسي ويلې وای: ولوضربه بابي قبيس.

حقيقت دادئ ،چي دغه اعتراض ځکه صحيح نه و ،چي عرب همدغسي وايي لکه امام ابو حنيفةرحمة الله عليه ،چي جمله ويلې وه.

رحمة الله عليه
ره

سمه ويلې وه ،چي هغوى په اسماء ستة كي ټول وخت الف مني لكه ،چي يو شاعر وايي:

**فان اباها وابا اباهـــــا**

**قد بلغا في المجد غايتاها**

په پورتني شعر بايد دنحوي قانون له مخي (وابا ابيها) وويل سي.
قاضي ابن خلكان دخپل جواب په اوږدو كي ليكي:
وهي لغة الكوفيين وابوحنيفة رَحِمَهُ اللهُ عَلَيْهِ من اهل الكوفة.([1])
ژباړه: دا دكوفه والو لغت دئ ،چي امام ابوحنيفة رَحِمَهُ اللهُ عَلَيْهِ استعمال كړى دئ او امام ابوحنيفة رَحِمَهُ اللهُ عَلَيْهِ هم دكوفې دخلكو څخه دئ.
پورتنۍ قصې په وجه پر امام ابوحنيفة رَحِمَهُ اللهُ عَلَيْهِ باندي دعربيت دكموالي نيوكه راپورته سوې ده خو كه څوك په دغه خبره پر امام ابوحنيفة رَحِمَهُ اللهُ عَلَيْهِ باندي دعربيت دكموالي اعتراض كوي دا خپله دمعترض دعربيت پر كموالي باندي دلالت كوي.

# په تقليد كي جمود

په وروستۍ كي داخبره ديادوني او پام وړه ده ،چي لكه څرنګه ،چي دتقليد مخالفت او په شرعي احكامو كي ځاني نظر دملامتيا او مذمت لايق كار دئ په دغه ډول په تقليد كي جمود او غلو كول هم دمذمت وړ او دملامتيا وړ كار دئ ، لاندي ،چي كوم صورتونه ذكر كېږي هم دغه

[1] [redacted] رَحِمَهُ اللهُ عَلَيْهِ ج: [redacted]

صورتونه ښه نه دي ، جمود في التقليد پکښې سته او په تقليد کې غلو
ده:

۱: دمجتهدينو په اړه داسې ګومان کول ،چې دوی ته دشارع مقام
ورکړل سي او يا دوی دانبياوو په څېر معصوم او دهر ډول خطاوو څخه
پاک وګڼل سي.

۲: په کوم صحيح حديث باندې يوازې له دې امله عمل ونه کړل سي
،چې په دې اړه زموږ دامام څخه کوم قول نه دئ رانقل سوی دمثال په
ډول په تشهد کې د(اشهدان لا اله الا الله) په ويولو سره دشهادت ګوته
پورته کېدل په زيات شمېر حديثونو سره ثابته ده مګر څوک ،چې يې له
دې امله نه پورته کوي ،چې په دې اړه دامام ابوحنيفة رحمة الله عليه څخه کوم
قول نه دئ رانقل سوی همدا لامل دئ ،چې ځينو خلکو لاندې ګستاخانه
او بې ادبه جمله ويلې ده:

*مارا قول ابوحنیفہ رحمة الله عليه باید، قول رسول کافی نیست*

نعوذبالله العلي العظيم، دا هم هغه جامد تقليد دئ ،چې بدې يې په
قرآن او حديث سره ثابته ده.

نه وي او دمذهب سره يې برابرول، او يا داسې دکاره وتلې تاويلات
پکښې کول ،چې دده خپل زړه هم پر مطمئن نه وي خو دا دهر چا فکري
جوګه والی دئ ، که ،چيرې کوم کس ته دحديث په کومه توجيه کې
رښتينې شرح صدوري وي او بل کس يې صحيح نه وبولي نو دغه دوهم
کس ته پر لومړی کس باندې دنيوکې کولو حق نسته.

: که يو متبحر عالم ته صحيح حديث ورسيږي ، دا ورته معلومه سي

کي بل معارض هم نه وي نو بيا هم دغه متبحر عالم حديث پرېږدي او په مذهب عمل وکړي دې ته هم جامد تقليد ويل کېږي ،چي پوره تفصيل يې مخکې تېر سو.

**٥**: داهم په تقليد کي جمود او غلو ده ،چي څوک داسي عقيده ولري ،چي زما مذهب حق دئ او نور مذهبونه نعوذبالله باطل دي.

حقيقت دادئ ،چي دټولو مذهبونو امامانو داجتهاد دشرايطو دپوره کولو وروسته هر يوه دقرآن او حديث دصحيح مقصود دمعلومولو لپاره پوره ، پوره کوشش کړی دئ نو ځکه دټولو امامانو مذهبونه حق دي همدا وجه ده که ديوه مجتهد څخه کومه اجتهادي غلطي سوې وي نو نه يوازي ،چي دالله جل جلاله په وړاندي معاف دئ بلکي الله جل جلاله ده ته دخپل کوشش ثواب هم ورکوي ،چي تصريح يې په احاديثو کي سته ،البته يو مقلد داسي ويلای سي ،چي زمامذهب صحيح دئ خودابه وايي ،چي زما په مذهب کي ددې احتمال سته ،چي ځيني شيان پکښي غلط وي او دنورو مذهبونوپه اړه به هم داسي عقيده لري ،چي هغه مذهبونه دصحت او غلطتيا دواړو احتمال لري.

٦ : دمجتهدينو امامانو زيات اختلافات رابرسېره کول او وړاندي کول داهم لويه غلطي ده ځکه په زياتو مسائلو کي دامامانو ترمنځ اختلاف يوازي دافضليت او نه افضليت خبره وي، دجواز او نه جواز خبره نه وي لکه درکوع پر مهال باندي لاسونه پورته کول يا نه پورته کول ،آمين په زوره ويل ، يا نه ويل ، په ولاړه کي لاسونه تر نامه لاندي نيول او يا پر سينه باندي نيول او داسي نوري مسائلي داټولي مسائلي هغه مسائلي دي ،چي دافضليت او نه افضليت خبره ده که نو پر دواړه طريقو باندي

مسائلي رابرسېره کول ، دحلال او حرام حکم ورکول ،يا په امت کي تفرقه پيدا کول او داسي نور داټول کارونه حرام او ممنوع دي بايد په کلکه ځانونه ځني وساتل سي.
۷: همدا ډول داامامانو په منځ کي ،چي کومي دجواز او نه جواز مسائلي دي دهغوی په اړه اختلاف ته عملي بڼه ورکول يعني داچي دداسي اختلافاتو په وجه جنګ جګړې کول په هيڅ مذهب کي جايز نه دي يا داچي دداسي اختلافاتو په وجه يو بل ته عيب ويل ، پوچ رد سره ويل اوبدګوماني سره کول دټولو مذهبونو په اتفاق سره حرامي دي پردې موضوع باندي علامه شاطبي رحمة الله عليه مفصله او نفيسه وينا کړې ده څوک ،چي دعلم ښتنان وي هغو ته دمطالعې وړ ده.([1])

[1]: وګورئ: الموافقات للشاطبي رحمة الله عليه ، ج : ۴ ، ص : ۲۲۰ تر ۲۲۴

# وروستۍ وړانديز

دتقليد دمسئلې حقيقت دخپلې علمي توانايۍ په اندازه په تيرو صفحو کې روښانه کړل سو په آخر کې زموږ وړانديز دا دئ ،چې ددې کتاب دليکلو څخه زموږ موخه دانه ده ،چې بحث ، مباحثې او مناظرې دې وکړل سي بلکې زموږ موخه داده ،چې دمسلمان امت داکثريت برخې دريځ ،چې دېلو مذهبونو سره اړه لري هغه څرګند سي ، که ،چيرې په ناخبرۍ سره دقلم دڅوکې څخه کوم داسې لفظ وتلی وي ،چې دچا دخفګان او ناراضۍ سبب ګرځېدلی وي نو دهغه څخه دزړه له کومې او په پوره اخلاص سره بخښنه غواړو.

ددې صفحو دليکلو څخه اصلي موخه داده ،چې دمسلمان امت دزياتې برخې نقطه نظر دلايل څرګند سي او دغير مقلدينو له خوا ،چې اختلافات سوي دي او ددغو اختلافاتو په وجه باندې دحرام ، شرک او داسې نورو شيانو غلط فهمياني پيدا سوي دي ددغو غلط فهميانو دليرې کېدو امکانات زيات سي که څوک زموږ ددغه نقطې سره بيا هم اختلافات لري نو بيا دې پر خپل دريز باندې ودرېږي او زموږ پر امامانو دې دا تور نه لګوي ،چې دوی شريعتونه دځانه جوړ کړي دي او نه دې ددغو مجتهدينو پر پيروانو باندې دشرک الزام لګوي دا يو خطرناکه کار دئ داسې خطر ناکه دئ ،چې زر ځله پناه ځني غوښتل پکار دي.

ددغسې خلکو لپاره دمشهور اهل حديث عالم نواب حسن خان رحمة الله عليه ،چې دوی ته دلارې دڅراغ حيثيت لري - يو اقتباس

رحمة الله عليه

پرماباندي دالله جَلَّ جَلَالُهُ يو احسان داسوى دئ ،چي زه ناجيه فرقه يوازي اهل سنت ګڼم په اهل سنتو كي كه حنفي وي ، كه شافعي وي ، كه مالكي وي ، كه حنبلي وي ، كه ظاهري وي ، كه اهل حديث او كه متصوف وي ددغو ټولو په حق كي زه هيڅ بدګوماني نه لرم سره ددې ،چي ماته معلومه ده،چي په هر ډله كي څه داسي مسائلي سته ،چي ددلايلو څخه خلاف دي او ځيني يې بيا دنصوصو سره موافقي دي ، ځيني فتاواوي يې صحيح ، ځيني كمزوري او مردودي دي خو حكم اكثريت ته دئ نه اقليت ته ، داامامانو څخه ،چي كوم عمل دحديثونو څخه پاته سوى وي دهغه لپاره شل عذرونه دي ،چي په جلب المنفعت نومي كتاب كي ليكل سوي دي.

دسلفو پر امامانو باندي دا طعن لګول ،چي دوى دسنتو څخه مخالفت كړى دئ دا په دې معنا دئ لكه په انصاف كي ،چي څوک چور او چپاول جوړوي ، البته كوم مقلد ته ،چي صحيح قرآني دليل او يا صحيح حديث څرګند سي بيا هم پر خپل مذهب باندي كلک ولاړ وي او په تقليد كي بيا هم جمود كوي داسي كس ته خطا كاروايم او ګناه ګار ورته نه وايم ، نه يې معاذالله كافر بولم او نه داوايم ،چي په دغه كس پسي لمونځ نه صحيح كېږي.

په مسائلو ، عباداتو او معاملاتو كي داختلاف په وجه كفرنه رامنځته كېږي او نه يې علماوو ته ددغه اختلاف په وجه كافران ويل كېږي غاية ما في الباب خطاء في الاجتهاد او يا خطا في انفسهم ورته ويل كېږي ،چي علماء يې پېژني.

الله جَلَّ جَلَالُهُ

جَلَّ جَلَالُهُ

كه زه قصدا پر خطا روان يم نو دا زما لپاره ډېره دبدبختۍ او وېرلړلې

صحنه ده مګر کوم مسلمان ،چي دالله جل جلاله څخه ېرېږي او رحمت ته يې
اميد لري هغه ته هيڅ لازمي نه ده ،چي پر مسلمان دي بد ګومان وکړي
ځکه : نحن نحكم بالظواهر والله اعلم بالسرائر.[1]

دفتنو په داسي ډکه زمانه کي ،چي پر مسلمانانو باندي دفتنو او
مصيبتونو دهري خوا حملې اويرغل دئ په داسي حال کي زموږ لپاره
تردې لوی بربادونکی او هلاکونکی شي نسته ،چي پر کوچنيو او
فروعي مسائلو سره اختلاف کوو او يو دبله پر داسي کوچنيو خبرو
باندي سره لاس او ګرېوان يو ،چي پر کوچنيو ، کوچنيو خبرو باندي يو
وبل ته کافر او مشرک وايو ،يا دبل لمانځه ته فاسد وايو ، که دتاريخ
پاڼي موږ وګورو موږ ته ډېر ښه پند راکوي ځکه په تاريخ کي بېلابېل
داسي واقعات سته ،چي موږ سبق ځني واخلو ځکه هغه راښيي ،چي
هيڅ وخت دمسلمانانو سر کوم دښمن نه دئ ټيټ کړی بلکي هر وخت
،چي موږ ته کومه تباهي راغلې ده دخپل منځيو شخړو او اختلافاتو له
امله راغلې ده، تاريخ پردې شاهد دئ ،چي کله دمسلمانانو په منځ کي
دفروعي مسائلو پرسر باندي شخړي او اختلافات پيل سوه ، دښمن
ددې څخه لويه ګټه پورته کړې ده.

الله جل جلاله ته دا دعا کوو ،چي موږ ته دي سيده لاره راپه برخه کړي ،
الله جل جلاله دي موږ ته دحق پېژندلو او دحق داتباع توفيق راکړي، الله جل جلاله
دي موږ ته دا همت راکړي ،چي باطل ته باطل ووايو او ځانونه ځني
ژغورو، الله جل جلاله دي موږ دخپل منځي جنګو څخه وساتي او ددې

---

[1]: دفاران مياشتنی پاڼه ، سنه : ١٩٦٤، دفاران مجلې دمدير ماهر القادري څخه په
مننه.

پرځای دي الله جل جلاله داسي توفيق راکړي ،چي خپل ژوند ددين دلوړو مقاصدو لپاره وقف کړو.

آمين ثم آمين وآخر دعوانا ان الحمدلله رب العلمين.

**دژباړي تکميل** : ۱۴۳۱هـ ق

مولوي عبدالهادي حماد
۰۷۹۹۷۹۵۰۵۰
aef.kdr@gmail.com